# پشتو

منظوم کلام

شیخ المشائخ

جامع شریعت و طریقت

قطب الاقطاب ولی کامل

## حضرت مولانا غلام ربانیؒ

نقشبندی مجددی سیدپوری

جامع صاحبزادہ ابوذر غفاری نقشبندی مجددی

ادارہ بلاغ الناس

نام کتاب : کلیاتِ ربانی (پشتو)

مصنف : مولانا غلام ربانی نقشبندی مجددی

جامع و مرتب : صاحبزادہ ابوذر غفاری

کمپوزنگ : شاہ زمان‘ درہ آدم خیل‘ کوہاٹ

کاپی پیسٹنگ : شان محمد‘ 14/D مکہ کالونی‘ گلبرگ iii‘ لاہور

ناشر : اقبال پبلشنگ کمپنی‘ اکرم آباد‘ مدینہ کالونی‘ والٹن‘ لاہور

مطبع : میٹرو پرنٹرز‘ لاہور

اشاعت اول : گیارہ سو (1100) اکتوبر 2000ء

الیکٹرانک اشاعت : ادارہ بلاغ الناس

الیکٹرانک ترتیب: سید محمد انور شاہ (طالب دُعا)

Mobile no,0344-5559888
0342-5559888
Email:Shahpk82@yahoo.com

## ***** انتساب *****

بسم الله الرحمن الرحیم

زه دا حقیر کوشش د سلسله نقشبندی ټول مشایخ اؤ د حضرت خواجه خواجگان خواجه شمس الدین نقشبندی مجددی سید پوری اؤ د هغه ټول متعلقین آل اولاد خلفاء مریدان اؤ خاص کر د حضرت باباجی صاحب مولانا غلام ربانی صاحب اؤ د هغه ټول متعلقین آل اولاد خلفاء مریدانو په نوم کوؤم -

الله تعالی د دغو نیکو هستو په طفیل څمونګ د ټولو لوستونکو اوریدونکو اؤ عمل کونکو مغفرت وکړی-

والسلام

ابوذر غفاری

صاحبزاده ابوذرغفاری

حال مقیم ربانی منزل E526/13

اکرم آبادمدینه کالونی والټن لاهور

# عکس تحریر

## لن ترانی

برابر کتلی نشم ستا رخسار ته　　څوک د ذره غوندې خي لوی شي انګار ته

په تش نوم دي ګذاره کولی نشم　　بې حجابه هو سیکمه دیدار ته

بنفشه که د همت قامت بلند کړي　　رسیدی نشي خود سرو او چنار ته

خراطین که د زمین عشق بازي کړي　　لاسې نه رسیږي د زلفو لوه تار ته

چه درون یې تصور اسباب د عشق وي　　حاجت نه لري د حسن و بازار ته

چه په دم یې بیماران د غم رغیږي　　حاجت لري د هغو شربت انار ته

نه خوه کیږي په حلوا خوله د صفرا　　د وصال سقمونیا ورکړه دې بیمار ته

د غلام سترګې له نمله نه وچیږي

لکوم وقتي چه کتلي دي روی یار ته

وقت بنی

# ***** پیژندگلو *****

آلائ د قدرت صاف شفاف اؤ اوچتو اوچتو غرونو پہ مینځ کښ یوه وسیع خائستہ زرخیزه وادی ده - څلور واړه طرفتہ ئے دنگ شنہ غرونہ چاپیره دی - قدرت د فطرت ټول حسن ورلہ ورکړے دے د آلائ یو غاړه چہ د گړنگ پہ نوم یادیگی د علاقے پہ ټولو کښ اوچت غربانده واقع دے - سرخیلی قوم چہ خپل یو اوچت شان اؤ منفرد تاریخی حیثیت لری پکښ آباد دے د سرخیلو ملاخیل لړ کښ د قلم شاه بابا د ځوی محمد عادل پہ کور کښ د نن نہ څہ کم یوسل اؤ شل 120 کالہ مخکښ یوماشوم پیدا شو-مور پلاردماشوم پہ پیدائش ډیره خوشحالی وکړه اؤنوم ئے ورلہ نوبت جان کیخود-نوبت د ساز هغہ دل عزیز اؤ دل آویز حصہ ده چہ کلہ محفل کښ غگیگی نو محفل ورسره ټول مسحور شی - نوبت جان د ورکوټوالی نہ خاموش طبع سنجیده محنتی پرهیزگار وو- قدرت ورلہ ظاهری شکل صورت داسے ښکلے ورکړے وو چہ ثانی ئے نہ وو- قدرت دغہ قانون دے چہ پہ دنیا کښ د کومے هستئ لہ د مخلوق رهنمائ توصیف کړی نو د هغہ ظاهری سهارے ختم کړی اؤ ددے پہ وجہ پہ دغہ هستئ کښ د ورکو ټوالی نہ خوداعتمادی- توکل- یقین صبراؤ تقوی غونده صلاحیتونہ پیداشی - نوبت جان لا ماشوم وو چہ مور پلار ئے ددنیا نہ رخصت شو-دا یوه ډیره پس

مانده اؤغریبہ علاقہ دہ اؤ گذر اوقات د خلقو پہ زمینداریٔ اؤ پہ کارکسب دے - لوئے رونړہ چہ بہ ئے کور کښ نہ وو نو ورندارو بہ نوبت جان اؤ د ھغہ ورکوټی رور وزیر تہ بہ ئے تکلیف اؤ دردرسولو -دھغو لہ دغے سلوک دسببہ نوبت جان اؤ وزیردکور نہ وتختیدل اؤ لرے یو جماعت کښ دیرہ شول - پہ دغہ زمانہ کښ د کلی د جماعت حیثیت دمدرسے اؤ تربیت گاہ وو- کوم عالم څخہ بہ چہ د کوم فن کتاب موجود وو ھغہ بہ پہ ھغہ فن ماھروو - قدرت نوبت جان تہ لہ اولہ ورځ نہ چہ کوم استاذ کړو ھغہ مولانا جمدر خان صاحب وو چہ د مروجہ علومونہ علاوہ پہ فارسیٔ کښ ډیر ماھر وو اؤ طبیعت ئے شعروشاعری- ادب - اؤتصوف طرفتہ مائلہ وو- پہ اولہ ورځ چہ استاذ صاحب د شاگرد نوم معلوم کړہ نو قدرت ئے دا خبرہ پہ زړہ کښ واچولہ اؤ دا ئے افرمایئل چہ دنن نہ څما نوم غلام جیلانی اؤ ستانوم غلام ربانی دے -دا د استاذ تربیت شفقت اؤ محبت وو چہ شاگرد ئے د حصول علم د پارہ حوصلہ افزائ اؤ ډاډ بیا موندہ باباجی غلام ربانی صاحب د اباسین د ېږئ سرہ سرہ واقعہ کلی مثلا کنډ - دوړ میرہ - ټھاکوټ شگئ اؤ نورو علاقو کښ چہ کوم علماءؑ فضلا موجود وود ھغو ټولو نہ ئے علم اؤ تربیت حاصل کړہ -خاص کر د دوړمیرے یو لوئ صاحب نسبت شخصیت چہ نوم ئے کوکا دادا وو اؤ د علم تجوید

ترتیل و ترسیل امام منلے شوے وو د هغہ سره ئے ډیرعمر تیر کړے وو- پہ دغہ دوران کښ ئے کشرے رور وزیر پہ یوه حادثہ کښ وفات شو- د وزیر د وفات کیدو نہ پس د باباجی غلام ربانی ذهن اؤ فکر د دنیا نہ متنفر شو - باباجی د څوارلسو یا پنځلسو کالو ځوان وو چہ د راولپنډئ سره نزدے د ګولړه شریف سره پہ خوا کښ قصبہ قطبال نوم یو کلی کښ د علم صرف و نحو اؤ د قانون یو لوئ مشهور عالم وو د هغہ پہ خدمت کښ حاضر شو- دے دګولړے سره یوکلی کښ پاتے کیدو اؤ د سبق د پاره بہ روزانہ د ګولړه شریف پہ لارے قطبال تہ تلہ راتلہ - یو ورځ د ګولړه شریف یو پیرصاحب ورتہ اووے چہ عرس شروع کیدو والا دے تہ درے ورځے ما څخہ حصارشہ اؤ دا نقش ما د پاره لیکہ چہ څہ ئے خلقو تہ ورکوؤم - اول دوه ورځے پہ خیریت سره تیرے شولے خو پہ درئمہ ورځ چہ عرس ختم شو نو باباجی غلام ربانی صاحب د شپے پہ خوب کښ ګوری چہ د قطبال پہ نالہ کښ پہ یو ګټ ولاړدے اؤ د آسمان د طرف نہ یو تندر پہ دغہ ګټہ راپریوتہ - ده بلے ګټے تہ ټوپ کړو خو پہ یو بسرکی پہ خے خپے باندے ولګیدو- د درد اؤ تکلیف نہ چہ راویخ شو نو د عرق النساءؑ پہ رنځ کښ مبتلا وو- د پیر صاحب مخے تہ چہ لاړو نو دا خبره ئے وکړه " چہ ځما مقصد علم حاصلول وو کہ چرے ما علم حاصل نہ کړو نو صبا د قیامت پہ ورځ "د دغہ الفاظو پہ آوریدو سره دغہ

بزرگ راپاسیده اؤ ورتہ ئے اووے چہ شکایت بہ کوے -باباجی غلام ربانی ئے خپلے سینے سرہ ونیسل اؤ ورتہ اووئیل چہ اوس ځہ - هرکلہ چہ دے هغہ مقام تہ ورسیدل چہ خوب کښ ئے لیدلے وو نو پہ ظاهری سترگو ځہ گوری چہ د هر طرف نہ د علم صرف و نحو اؤ نورو علومو نو عبارتونہ د هر کانړی بوټی راپورتہ کیگی اؤ د دہ نہ راتاویگی-دعرق النساءٔ علاج د پارہ پہ دغہ زمانہ کښ کوهاټ کښ یو خان صاحب مشهور وو - باباجی غلام ربانی صاحب هم خان صاحب څخہ لاړو خو د ملاقات سرہ ئے مطمئن نہ شو- د ماښام وخت وو چہ د قصابانو پہ محلہ کښ یو وړوکی جماعت تہ وردننہ شو - ځہ گوری چہ د جماعت یوے ستنے سرہ ړول رازوړندے - دے ډیر حیران شو اؤ زړہ کښ ئے ووئیل چہ ځما پہ ځہ  شپہ بہ تیرہ کړم - د ماسخوتن مونځ نہ ورستو یو سپین گیرے راغے اؤ دہ تہ ئے اووے چہ طالبہ پہ کوم غرض راغلے ئے ؟ دہ اووئیل چہ بیعت کیدو د پارہ - سپن گیری ورتہ اووئیل چہ تہ استخارہ وکړہ اؤ ځہ بہ هم استخارہ وکړم سحر بہ ملاقات کوو - سحر سپین گیری باباجی‌صاحب تہ اووئیل چہ طالبہ د بیعت دپارہ هیچا څخہ مہ گرزہ - ما تہ پہ خوب کښ ولیدے چہ پہ اس سور ئے اؤ د نقشبندو جهنړا دے پہ لاس کښ دہ اؤ ځے خپہ دے د دغہ ځائے نہ نشتہ - د بیمارئ پہ سبب ددہ د علم طب سرہ هم شوق پیدا شو اؤ دینی اؤ مروجہ علمونو سرہ سرہ ئے طب

کښې هم دومره نوم پيدا کړو چه د وطن د راتلو نه مخکښې شهرت د آلائ ګوټ ګوټ کښې خور شوے وو- هر کله چه دے آلائ ته راغلو نو د پوکل مشرخان سردار محمودشاه خان په کور کښې آولاد نه وو - د باباجی غلام ربانی صاحب په علاج کولو سره الله پاک خان موصوف ته آولاد ورکړو-خان ورله په خپل جاګیر کښې يوه لويه زمکه چه په چړ باندے مشهوره ده وراوبخله - په دغه دروان خواجه خواجګان حضرت خواجه شمس الدين نقشبندی مجددی د کشمير نه د آلائ په دوره راغلے وو - باباجی غلام ربانی صاحب ترينه هم بيعت وکړو - په دوئم ملاقات کښې خواجه صاحب ورله خلافت ورکړو اؤ خپل نورو مريدانو اؤ خلفاؤ ته ئے اوويئل چه د ګړنګو مولانا صاحب سره د الله د مخلوق ډير زيات تعلق دے - د خواجه صاحب دا فرمان چه

ګفته ئے او ګفته ئے الله بود
ګر چه از حلقوم عبدالله بود

نن د دنيا داسے علاقه اؤ ملک نشته چه د باباجی غلام ربانی صاحب د تعلق خلق پکښې نوی - لکه مولانا روم چه د شمس تبريزی ژبه وه هم دغه رنګ باباجی غلام ربانی صاحب د خواجه شمس الدين صاحب ترجمان دے-د مرشد سره ئے تعلق اؤ مينه دعشق نه مخکښې دديوانګئ حدته رسيدلے ده - د خلافت نه روستو لکه مشک کستوری غوندے خوشبو ئے په ټولو علاقو خوره شوه - دنن دهاړ د خلقو په ډيراسرار

باندے بابا جی مولانا غلام ربانی صاحب د آلائ نہ ککړشنګ
کلی تہ هجرت وکړو- پہ دے وخت د مولانا صاحب زهد -
تقوی - بزرګئ اؤ توحیدی کلام شهرت نمر پہ نیم آسمان وو
چہ ضیاء پاشی ئے د پاکستان نہ باهر نور ملکونہ هم منور
کړه - د لاهور د تعلق والاؤ پہ ډیر مجبوره کولو دریم هجرت
ئے لاهور تہ وکړو خو د مرضونو اؤ د عمرد تقاضے پہ وجہ
بہ ئے طبیعت اکثر خراب وو - د بندش بول پہ وجہ صاحب
بستر شو - د لاهور د ګرمئ اؤ حبس د لاسہ د باباجی کشر
ځوئ حمید الله عرف کاکا صاحب پہ راولپنډئ کښں د کهنہ
پل پہ خوا کښں ځان د پاره مکان واغستہ اؤ باباجی صاحب
ئے هم د لاهور نہ راولپنډئ تہ منتقل کړو - قیام پنډئ پہ
دروان کښں ئے صحت ورځ ترورځ زیات خرابیده پہ کال
1996کښں بابا جی حضرت مولانا غلام ربانی صاحب دخپل
مشر ځوئ صاحبزاده ابوذرغفاری صاحب د جان نشینئ
اعلان وکړو - دسمبر 1996کښں پہ باباجی مرض سختہ حملہ
وکړه -اؤ د یو طویل علالت نہ روستو پہ ځلورم مئ 1997
بروزاتوار د آسمانی ولایت دا نمر خپل خالق حقیقی سره
ملاؤ شو -آخری آرام ګاه ئے کانبفہ نزد ککړشنګ ضلع و
تحصیل بټګرام کښں واقع دے-باباجی غلام ربانی صاحب
دتصوف-شریعت-طریقت یوبحر بیکران وو- د فصاحت
وبلاغت اؤ دعشق حقیقی یو سمندر وو-چہ مخلوق خداوندی
ترینہ فیض اغستے دے- پہ ټولے دنیا کښں کم ازکم یوسل

اؤپنځوس خلیفہ ګان ئے موجوددی - د باباجی صاحب پہ ژوندکښ دده کلام چھاپ شوے وو اؤ مقبول خاص و عام منلے شوے دے - پہ اردو ژبہ کښ اسم ذات اقدس - رموزتصوف -عرفان ربانی - شرح قصیدہ امالی - پہ فارسئ کښ افکاربلاغت - انفاس معرفت - حقایق الحسنی شرح اسماۓ الحسنی - اربعین جامی - صبغت الله - تمنا ئے حج - اؤ پہ پښتو ژبہ کښ انوار توحید-دمونځ ترجمہ چھاپ شوی وو-د دہ د وفات نہ روستو مکتوبات غلام اؤځمونږه دا حقیر کوشش کلیات ربانی پہ پښتو ژبہ کښ ستاسو پہ لاس کښ دے- د رحمان بابا نہ روستود تصوف - شریعت- طریقت یو دریاب پہ کوزه کښ بند دے - ځہ پہ دے کاوش کښ د جناب نذیراحمد صاحب ڈاریکټراولڈایج بینیفټ - محمد سلیم بھټی صاحب - صوفی مقبول احمد نقشبندی صاحب میان محمد سلمان نقشبندی چہ دباباجی صاحب خلفاۓ دی اؤ د نورو ټولو دوستانو ډیر مشکوریمہ چہ دکتاب پہ طباعت کښ ئے ھرقسم تعاون کړے دے اؤ درسول الله صلی الله علیہ وسلم د حدیث پہ مقصد " کل مسلم اخوة " د اردو دان طبقہ لہ طرفہ نہ خپل پښتودان رونړوتہ داتحفہ پیش کړے ده الله تعالی د پہ مصنف اؤ د مصنف پہ آل اولاد - ناشر طبع اؤ خاص کرد دے کتاب پہ تیارئ کښ دکمپوزرجناب شاه زمان خان صاحب دره آدم خیل باندے خپل رحمتونہ نازل کړی- چہ دشاه زمان صاحب کمپوزنګ اؤ محنت لہ برکتہ د

باباجی کلام یو ځائے شواؤ طبع شو-د شکریے مستحق جناب شیر علی خان صاحب مولانا اکبر زمان صاحب اؤمحمدطیب غوری صاحب اؤ ملک محمد قاسم سعید ملک هم دی -دالله تعالی نه دادعا کؤم چه الله پاک دمصنف دهغه په آل اولاد-قدردانو مریدانو - د کتاب کمپوزر- ناشر طابع ټولو باندے خپل رحمتونه نازل کړی اؤ د باباجی صاحب اؤ د هغه کلام ځمونګ له پاره ذریعه نجات وګرځوی

نوټ:- د باباجی صاحب سوانح عمری "شہباز لا مکانی" اردو ژبه کښې زیرطبع دے-

د دعا ګانو محتاج

صاحبزاده ابوذرغفاری

# ***** فهرست *****

## ***** فهرست *****

## ***** متفرقات *****

بسم الله الرحمان الرحيم

د ثنا حمد لائق دے خدائ ځما
د دنيا عقبا خا لق دے خدائ ځما

ممکنات ئے په قبضه کښ د قدرت دي
د تمام عا لم رازق دے خدائ ځما

له هر قسم عبادت ده لره ښائ
د جلآل جمال لآئق دي خدائ ځما

هغه حکم چه له ا مره نازليګي
په هر يوکلام صادق دے خدائ ځما

په کمال سره موصوف دے ذات اقدس
مستحق د د حقا ئق دے خدا ئ ځما

خبردار دے په کردار د هر بشر هم
دا ننده د دقا ئق دے خدائ ځما

د ممات آؤ د حيات قبضه دده دے
هم حافظ د خلائق دے خدائ ځما

د نيکا نو د نيکئ توفيق د ده دے
خبردارد هر فاسق دے خدائ ځما

د غلام فطرت ګواه په غلامئ شه
بخشنده د نا لائق دے خدائ ځما

ټول امکان ئے په نکته د کن جاري دي

ذوالختیار د کون مکان دے خداي ځما

په لا تقنطوا ئے هر مجرم ا مید کړي

چه صاحب دلوئ غفران دے خدائے ځما

د غلام په غلامئ دے خداي رضا شي

چه مولا د انس و جان دے خدائے ځما

*******پرواز خیال*******

څوك به یو سی تر آشنا جواب ځما

بیا به را وړي واپسی جواب ځما

په فراق ئے گل بدن پاره شه

التیام به کړي څوک دل کباب ځما

چه آفتاب ئے کړه بے تاؤ له تاؤ تابه

ستا جلوه به کړي سوخته خوناب ځما

که دناز په خنده خاندے یاره خانده

جا معه به شی خا طر خرآ ب ځما

پر یشان به دحیرت تل پریشان وی

دل بسته کا خپل زلفي تنآ ب ځما

مناسب چه سیاهی خون جگر شی

په خیالی قلم رقم کتآب ځمآ

غلامي د دلبرا نو ا فسري ده

تصور ستا ده رخسار نوآب ځما

**********

---

طلب ګار کہ د نګار ئے بیدار اوسہ

غرضدار کا ددیدارئے بیداراوسہ

کارد عشقہ سره خوب منا سب نہ دے

کہ د ترکو خریدار ئے بیدار اوسہ

عا شقي او دلبري دین و ایمان دے

کہ رښتیامسلم دیندرا ئے بیداراوسہ

بے پرواه چرے یو دم لہ یاره نشے

کہ دوصل خواهش دارئے بیداراوسہ

چرے لارد خپل نګارغلطہ نکړے

دم قدم پہ انتظار ئے بیدار اوسہ

د سید پور باد شاه غلامہ بد کرداره

ګناه ګار د رب غفار ئے بیدار اوسہ

************

---

دلتہ زړه دے پہ ناسوت کښں اندرون

پہ معنے لہ جبروت نہ دے بیرون

کله سرپه جبروت کښ راځرګندکړي
کله کله ملکوت ته شي پا یون

یو قدم په لا مکان بل په ثری ږدی
ښکته پورته وي له خیاله خرا مون

معتر ض که اعتراض په دا فقره کړي
خو پو هیګي اهل قلب په دے شییون

نه پو هیګم چه جادو که کرامت دے
چه دا هسے تاب لري زړګے زبون

جادوګر د منزل سیر کولے نشی
دا رفتار د کرامت دے همایون

کرامت بے له ایمانه موندے نشی
بے له شرع ایمان نه کوی چلون

شریعت ایمان محکم وی په یقین
دکامل یقین په عشق سره وي یون

که اسلام دے خو اسلام دعاشقے دے
بے له عشقه وي ایمان اسلام زبون

که عمل دے خو عمل دعا شقے دے
بے له عشقه وي هر یو عمل خزون

په کو هی دشقاوت غفلت ضلال کښ

خدایه ما نکړے په قهر سر نګون

په دریاب د عاشقئ کښ څما خدایه

د دیدار ګوهر په لاس راکړه میمون

په هغه قلم دوات کتاب نازیګمه

چه مرقوم شي پرله عشق نه مضمون

بے له عشق دانشمند نه دي

بے له عشقه عا قلان لا یعقلون

بے له عشق بادشاهی سلطا ني نشته

بے له عشقه عادلان دي ظا لمون

بے له عشقه باریکي زیرکی نشته

بے له عشقه عالمان لا یعلمون

طالبان د عا قلانو شاګردي کړي

غلام وائ څه شاګړد یم د مجنون

د مجنون شاګړدي عشق زده کول دي

دے په ترخ کښ م کتاب د یحبون

بے له عشق نه اقرار دے جا حدون .

بے له عشقه راه روان دے مضلون

بې له عشق رياضت نه دے

بې له عشقه عابدان دي جاهلون

بې له عشق نه شعور څه شعور نه دے

بې له عشقه ذي شعور لا يشعرون

بې له عشق نه تصديق څه تصديق نه دے

بې له عشقه صادقان دي کا زبون

بې له عشق نه طلب څه طلب نه دے

بې له عشقه طا لبان دی غافلون

بې له عشق نه اخلاص څه اخلاص ندے

بې له عشقه مخلصان دي کا هلون

بې له عشق زندګي زندګي نه ده

بې له عشقه زندګان دي ميتون

بې له غشق د حيات حلاوت نه وي

بې له عشق نه آدم ذاد دی هالکون

حلاوت خوحلاوت دعاشقئ دے

تراوت خو تراوت دے د مفتون

فلاحت به په قيامت د فضل کيګي

عا شقان به شي له عشقه مفلحون

بې له عشق هر هنر د زړګي رنځ دے

خدایه کړے غلام له رنځه نه ما مون

یارکه پرے کړي سرځما په تیغ دعشق

ملا وائ ما بخل دے ور ته خون

## ***** پرواز خیال *****

لکه حیران له حیرانئ نه سرګردان شمه

چه طلب دار د بې مانند بې نشان شمه

دحیرانئ له دسته شوم بےدربے بےدسته

لکه ویران له ویرانئ نه پر یشان شمه

په درس دالست تعلیم مالره راکړے دعلم

د ربوبیت له علمیت نه مکتب خوان شمه

په ارادت دکثرت ازلي شان و شفقت

د مرحمت په عنایت سره شادان شمه

د جلالت اطاعت د رسالت صداقت

ظاهرباطن کښ خبردارله خپل ایمان شمه

د نبوت حقیقت علم قدرت دلالت

په ثمرات د معجزاتو مسلمان شمه

دربوبیت عنایت کارکن په کارد وحدت

په صدارت د معجزاتو حق میلان شمه

مسلماني دمسلم شوه ستوماني د مسلم
د بدعتيا نو لہ بدعت نہ پہ لرزان شمہ

دسیدپوري پہ فيضانہ شہ ہیرعالم مسلمان
د ما ورا لہ غلامئ نہ پہ آمان شمہ

د غلامئ مضمونہ د بندگئ نظمونہ
پہ فضل پاك دپاك مولاوحدت بیان شمہ

*****پرواز خیال*****

شين لوگے م لہ ضميره نہ برپا شہ
تاؤ تاب ئے رسيده هم تر سما شہ

لہ اسمان نہ خو سدره تہ روانيگي
جلوه گين ورتہ جبين دخپل اشنا شہ

خو ئے نيغ كتلي نہ وي مخ د يار تہ
ما سوى ئے لہ ضميره نہ جدا شہ

دو رنگي د عاشقا نو پيشہ نہ ده
غلامئ كښ غلام څکہ نن يكتا شہ

******نغمہ ؏ عروج******

اے كبک ناسوتي خرام پورتہ کړه لہ خیالہ گام
ملک دملکوت کړه رام کړه پہ جبروت مقام

سیر کړه د لاهوت تمام — کړه په شها دت دوام
پر یږ ده د تلوین مقام — پورته کړه له خیاله ګام
زړه په رنګ رنګین لره — تازه تر جبین لره
نوم د خدائے شرین لره — خیال فکر برین لره
لا کړه غیر الله په نام — کړه په شهادت دوام
پر یږده د تلوین مقام — پورته کړه له خیاله ګام
خیال د خپل دلبر کوه — خاص د زړه په سر کوه
ذات وته نظر کوه — عجز و نیاز اکثر کوه
دایماً تعظیم کړه د حضرت نظام — کړه په شهادت دوام
پریږده د تلوین مقام — پورته کړه له خیال ګام
عجز و نیاز بندګي — سنتیت زندګي
روئي ریا شرمندګي — خلوتت خر سنده ګي
جلوه نظر مکړه فام — کړه په شهادت دوام
پریږده د تلوین مقام — پورته کړه له خیاله ګام
روح چه په رفتار شي — قطع به ئے لار شي
وصل د نګار شي — موږ به په دیدار شي
صورت شي په سیرت تمام — کړه په شهادت دوام
پر یږده د تلوین مقام — پورته کړه له خیاله ګام
ملک دے د وحدت ځما — کور شه په کثرت ځما

سر شه په کلفت ځما گران شه اصلیت ځما

ځٍربه شي آخر غلام پریږده د تلوین مقام

پورته کړه له خیاله گام

## *****پرواز خیال*****

که په لاس کښ شه له خیاله باهوخپل

بیا خو کیږدي سر ځما په بازو خپل

ځه به پریږدم د امکان علاقے واړه

په طاعت کښ به ئےصرف کړم قابوخپل

رو برو به د دیدار په انتظار شم

په ادب به ورته مات کړم زانو خپل

که م ستا دلعل لعب شراب نوش کړل

په زمزم به ککړ نکړم تالو خپل

تاردخیال م ستا دخیال سره پیونددے

زړه جنکشن لرم د فکر بابو خپل

هیڅ اثر به په دلبرد غلام نکړي

تمام تن که کړم په اښکو لاهو خپل

## *****مقام و حال*****

له فکره ذکره نه بهتردکهترکارنه وینم

له بندگئ نه زندگئ کښ بهترکار نه وینم

په زندگئ کښې دبنده بندګي لوئ هنردے

له مزدورئ نه په مزدورکښې بهترکارنه وینم

له هر ګناه نه مغفرت له مشرکئ نه نفرت

د بد عتیانو له بدعت نه بد تر کار نه وینم

نام مسلم وته خپل رسم ورواج ښکاري ایمان

څه په اسلام کښې له سنت نه بهتر کار نه وینم

نظم قرآن اطیعواالله اطیع رسول کړه لازم

په مسلمان کښې د قرآن نه بهتر کار نه وینم

غلامیت د غلام خلق عبادت دے خدمت

څه له خدمت نه ولایت کښې بهترکارنه وینم

په تو حید ختم شو څما د نادانئ نظمونه

له نادانئ نه په نادان کښې بهترکارنه وینم

## *****تو حید معیت*****

ستا له باطن نه د باطن نظر جدا نه دے

ستا له ظاهر نه د ظاهر نظر جدا نه دے

جدا جدا دهرصفت اثردے هرصفت کښې

د ربوبیت له تربیت نه خوک جدا نه دے

سمع بصرعلم کلام په تا کښې دي له کمه

ستا له قوت نه د قوي قوت جدا نه دے

قوت اصلي قوت ډخدائ اثرئے تا څخہ دے

اثر د فعل فعل لہ نہ څہ جدا نہ دے

کہ دتوحید پہ سمع وا ورے دجنون بیتونہ

وائ غلام لہ خپل مولا نہ څہ جدا نہ دے

خبرنظرمغزتقوی حضورمدام دا بقا

خیال دمکان ده لا مکانہ څہ جدا نہ دے

د مسلمان پیشہ تسلیم صبررضاده شکر

لہ مکون نہ د تکوین قدرت جدا نہ دے

## *****حال و مقام*****

ځہ پہ حضرت کښې دقدرت انکسارت لرمہ

خاص پہ فطرت د کثرت انهدامت لرمہ

قوي قوت د ذوالقوت دے چہ نقصان نہ لري

زور اؤ قوت د ما وری انهما کت لرمہ

هرهغہ بند چہ شي پیونددزندګئ پہ امید

ځہ ئے ویران او پریشان انفعالت لرمہ

چہ لائق نہ وم د غلامئ ولے دکړمہ غلام

ستا دغفران پہ هرزمان استحقاقت لرمہ

ځہ دتوحیدګرمي لرم ګرم نعتون وایمہ

دتوحیدبازوم پہ مجلس کښې رقاصت لرمہ

## *****حال و مقام*****

شی لہ هرکارہ بہ بے کاراندام دہ کارځما
شریاني تاربہ تارپہ تارشي هر یو تار ځما

هریوپیوندلہ پیوند جدا بہ بندشي لہ بند
بدن نیازبین بہ عاقبت شي خواروزارځما

غنودہ تن پہ گور کښ فرسودہ تن پہ گورکښ
مدام بہ نہ ئے د ناز قدم د ناز رفتا ر ځما

جدا بہ سرشیی‌دسرخاك بہ دماغ شی دسر
شي نا بینا بہ بینا ئ دواړہ ابصار ځما

نہ بہ ئےدغوگ اوریدہ نہ بہ ئے دسترگو لیدہ
جلوہ بہ نہ شي پہ هیخ رنگ رنگین رخسارځما

نہ بہ وی خیال د جمال نہ تصور د جلال
مدام بہ نہ وي حا صل دیدار د یار ځما

نہ بہ جړیگي غلام نہ بہ وي سوزوآرام
نہ بہ یاران وي د توحید گرم گفتار ځما

## *****مقام و حال*****

پہ جوفہ کښ دے یقین نافہ دہ زړہ کښ
د توحید مشک غماز خوناب ځما دے

جبرائیل وائ آمین ځما پہ شور

د توحید پہ چغو انقلاب ځما دے

مکائیل د زمانے پیر د توحید دے

لہ فیضان ئے موج درموج سیلاب ځما

ځہ د بت او د بدعت تابع دار نہ یم

دل نشین کافي سنت کتاب ځما دے

چہ مقام ئے د خو بانو پہ لبان شہ

سورپیزوان دغلامئ جلباب ځما دے

شمس الدین نوردسیدپورپہ غیرکبش راغے

پہ مکان د لا مکان آ فتاب ځما دے

## *****مقام و حال*****

لہ احدیت نہ دوحدت پہ سفرتلئ راغے

کوردوحدت تہ دکثرت پہ سفرتلئ راغے

اهلاسهلا د مرحبا شور و غوغا

روحانیت تہ دصورت پہ سفرتلئ راغے

د ملکوت ملائک زاغلہ استقبال کوي

لہ ملکوت نہ دناسوت پہ سفرتلئ راغے

د جبروت ساکنان وائ مبارک تبارک

لہ باقیت نہ د فنا پہ سفر تلئ راغے

سفرحضردمبارک شه دلاهوت مقیمه

شکرمولا دے چه غلام په سفرتلئ راغے

مبارکي ورکئ عالمه د وصال په ښادئ

گرنګ ملا دے دهجران په غم ځپلئ راغے

**** حال او مقام *****

کله خود کله بے خود　　کله رود کله سرود

کله قوت کله قنوت　　کله ځان کله معبود

کله یار کله اغیار　　کله کار کله سجود

کله گل کله خزان　　کله خوب کله درود

کله باغ او کله راغ　　کله ماغ کله برود

کله لیغ او کله لاغ　　کله طاد کله تنود

کله صبر کله شکر　　کله زیړ کله کبود

کله گرم کله نرم　　کله جي کله شدود

کله وصل کله فصل　　کله قرب کله بعود

کله امر کله نهی　　یو کره د بل کسود

کله حور کله حضور　　یو نسیا ده بل نقود

کله نفس وي کله روح　　یو شاکر ده بل حجود

کله مرگ وي کله جوند　　یو فنا ده بل خلود

کله ځوان کله بوډا　　یو دراز ده بل فرسود

کله خرچ کله آمد کله قیام کله قعود

کله زنګ او کله رنګ یو حجاب ده بل ودود

کله زړه وي کله خیال کله سوز کله سرود

کله خاندی کله ژاړی یو صحت ده بل غدود

کله اور وي کله نور یو خلیل ده بل نمرود

کله فرش او کله عرش کله قال کله ودود

کله قبض کله بسط کله بند کله کشود

کله ځان کله جانان کله زیان وي کله سود

کله فکر کله ذکر کله نقش دل ربود

کله پیر کله مرید یو بیدار او بل غنود

کله کور کله سید پور یومذموم دے بل محمود

که غلام شي خوک د پیر یو آیاز دے بل محمود

د ګړنګ استاذ خبر کړئ

سید پورے پیر لري جود

## ******حال و مقام******

دا له چوبه اماده رباب د چا دے

دا سینه تراشده رباب ځما دے

پیچیده کړه د جلال جمال ګو شي

نرم شوے دا فکري تناب ځما دے

چہ ملک ئے د فلک کړه پريشان
دا دعشق پہ مستئ مست مضراب څما دے

چہ بخار بوئ رسيګي لا مکان تہ
د وحدت پہ انګار زړه کباب څما دے

چہ بيان ئے تور زلفان کړي شنہ خالونہ
دا د يار پہ رنګ مرکوم کتاب څما دے

چہ شوخي ئے د جمال عروس لہ ورکړه
د وحدت پہ رنګ رنګين ثياب څما دے

چہ دماغ ئے د نا سوت کړه بر آشوب
د کو هسار ملکوتي سداب څما دے

چہ ئے ډير زړونہ فنا کړه ظاهر نہ شو
دا د بحر يګا نہ ګرداب څما دے

چہ پہ زړه کښ د غلام لري مقام
دغہ فيض دسيدپوري جناب څما دے

## ****حال و مقام****

چہ پہ بند د قال شہ بند د حال معذور
شہ روان طرف د دارو تہ منصور

پہ دا وقت کښ يو موقع شوه داسے پيښہ
چہ موذن کړه د آذان تکبير پہ زور

منصور اوے چہ ملا مکړه بکواس ډیر

څما خپو لاندے ستا خداي دے مکړه شور

خلقو وے چہ دا لا بلہ بے دیني ده

یو پہ دوه شہ د منصورخلاج پیغور

بعض خلقو نےشانہ کړه هغہ ځاي

چہ ولاړ وو لاس تړلے پرے منصور

چہ فارغ شو لہ مانځ مانځ گزران

لہ ملا ئے تلاش وکړه پہ دستور

د آذان پہ وقت کښ ستا پہ وقت کښ څہ وو

کوم یو غم در باندے کړے وو مرور

د آذان پہ وقت کښ ستا پہ زړه کښ څہ وو

کوم یو غم در باندے کړے وو مرور

ملا وے لور م بالغہ ده پہ کور کښ

د واده تد بیر ئے څہ کړم نا صبور

اند یشہ م شب وروز پیسے روپۍ

دے غمونو کښ څما زړگے تک تور

خلقو واغستے بیلچے بیلونہ زرزر

هغہ ځائے کندیده کړه خود في الفور

د فینے او خزانے پکبن پرتے وے
لعل جوهر پکبن پراته وو بالو فور
آفرین شه د منصور په صداقت
فراست ئے په باطن کبن وو ګل نور
که غلام له حال او قاله خبر نه دے
په انعام باندے له خدایا دے مشکور

*****حال******

ترانه م د تو حید راغله په ګوش
څکه پریوتم له هوشه نه یے هوش
دا نغمه به م تر مرګه هیره نه شي
مبتد ی منتهی دواړه دي مد هوش
قوت ناکه چه له فضل ابتداء شي
انتها ئے صداقت وي په ډیر جو ش
ابتداء چه په سستئ سره شي سسته
خا تمه ئے یے مزے وي یے خروش
ابتداء هم انتها کبن صدق بو یه
د تګئ له مخه بیرته که روپوش
دا دلکش تصویر د پاك اسم اعظم دے
له باطنه تصور لره په ګوش

نندارچي او طلبګار د خپل نګار شه
مکړه شور لکه نعره د درازګوش
د غلام توحیدي چال لکه د شیر دے
بدل مه شه په مکرونو د خر ګوش

*****حال*****

شکریه دروئے بارے دے سرځما
شکرانه د دلبرے دے سر ځما
که په سیم وزرمونده شي ځه قربان یم
سیم و زر د دلبرے دے سر ځما
ځما سرکښ تصورستا دجمال دے
فدایه د سروري دے سر ځما
امتحان کښ دلربا په سوزځما کړے
غباره د غم خوارے دے سر ځما
ستا د غم بهار ځما په دماغ راغے
شګوفه د ګلزارے دے سر ځما
د نرګس غونده زمین ته به نسکور وي
شرمناک د دلبرے دے سر ځما
ځما ئے ځما غبار ستا د کوڅے شه
هوا ګیر د غلامے دے سر ځما

## ******حال******

ستا دیدن بار دیگر ځما درد جگر نشی
ستا دخط وخال خیال ځما دزړه پرهر نشی

در مر تبہ لا تعین بودیم باتو هم نشین
جلوے داحدیت لره کثرت ځما مظهرنشی

بوئ جدائے بد کجا سوز لقائے از کجا
ستا تعین اولے ځما پہ حق کښں دردسرنشی

در تعین ثانیا او صاف واسماؑ شد جدا
روح محمدؐ مصطفےٰ تکون لره اثر نشی

بالقوت قادر بدي اعلئ اول آخر بدي
مظهربہ دخا لق صبا آدم آبوالبشرنشی

این برزخ کبری صفا حائل میان ما شما
مظهر د ذات بے مثال لا مثال کشورنشی

در غزل پیچیده شد تسبیح و تهلیل غلام
نغمہ د ساز ماورآ چرے الله اکبر نشی

## *****سوز او ساز*****

خدائے پیدا کړه عاشقی لویہ کیمیا
لہ اخلاص پکښں شتہ سیمیا ریمیا

حرف د عین ئے عنایت ازلي دے
چہ ئے نسل د آدم کړه پہ سودا

حرف د شین دے شرافت د عاشقانو
چہ لہ فضل د چا زړه شي پہ غوغا

اندرون د عاشقانو آره کیگي
حرف د شین دے دآرے غوندے برپا

حرف د قاف ئے قلم تراش دے د فولادو
د عاشق زړه ئے لہ گوگلہ کړه جدا

د دیدار پہ لوئ دولت نہ غني کیگي
عاشقان دی قارونیان ناصح موسیٰ[۳]

د سمک غوندے وي تگے پہ اویو کښ
اندرون ئے وي لہ عشق نہ جلیا

نہ مړیگي پہ شربت د وصالت
چہ علیل شي خوک دعشق پہ سودا

د سید پور پہ رهبر لار موندلے کیگي
د غلام د یار دیدار بہ کړي نما

******سوز و ساز******

چہ اقلیم د عاشقئ د عاشق رام شي
شهنشاه شي خود حاصل ورتہ آرام شي

د جمشید غونده په تخت د وصل ناست وي

جام د جم ئے د خاکي زړه ګوټی جام شي

خاکي جام چه شي صفا له ګرد غباره

خود معلوم پکښ د هر علم کلام شي

چه تدریس د عاشقئ په مندرسه کړي

خود په سر به ئے د عشق تحصیل تمام شي

چه بدنام په دلبرئ د دلربا وي

عا قبت به د وصلت په نام نیک نام شي

په جهان به لکه نور غونده روشن وي

څوک چه ستا په جستجو پسے ګم نام شي

ممتحن د عاشقانو نور د دین دے

خدائے د مل په امتحان کښ د غلام شي

*****سوزوساز*****

که روئے بار دے خو روئے بار د محبت دے

که دلدار دے خو دلدار د محبت دے

که طلب دے خو طلب د محبت دے

که روزګار دے خو روزګار د محبت دے

که غرض دے که مقصود دے که بهبود دے

که کردار دے خو کردار د محبت دے

که سفر دے که حضر دے که قرار دے
بل څه نه دي کل اسرار د محبت دے

که زلفان دي که چشمان دي که لبان دي
زیب زینت واړه آثار د محبت دے

که مهتاب دے که آفتاب دے نور د دین دے
په هر ملک باندے پر تو د محبت دے

سید پوري نسبت د خدائے فضل و کرم دے
د غلام نور ا لانوار د محبت دے

## *****سوزوساز*****

په جما لت سره چه وګورے مزدور به شمه
په جلالت سره چه وګورے رنځور به شمه

ستا د قدرت په پنجه خیراو شرځما دي بندي
په مغفرت سره چه وګورے مغفور به شمه

له جهالت نه کهالت ځما فطرت دے خراب
په کرامت سره چه وګورے ما مور به شمه

د هدایت په اشارت چه کرشمه کړے د ناز
ابدا دائما دلداره ستا مسحور به شمه

ستا په کتو کښ نقصان نشته تقصیرما څخه دے
که له اخلاصه نه د وګورم منصور به شمه

په غلامانو رحم بويہ چہ مولا وي رحيم

په لطافت سره چہ وګورے منظور به شمہ

******سوز اؤ ساز******

زړګے قرار نا قرار شہ دو بار ځما

لکہ بيمار شہ بسيار انتظار ځما

بنده د حق شہ د حق سره حق تہ رسيد

په دار د خار شہ دوبار زړه آزار ځما

دغہ سفردے کہ حضردے خبر نہ شومہ

چہ شہ نيتہ دار خوش ديدار د يار ځما

د ليونتوب حيوانتوب چاره ګر نہ وينم

ليل و نهار شہ دوثار د غم کار ځما

خاونده بيا په سودا مے رسوه نہ کړے

غلام يار د اغيار نہ دے کار ځما

***********

کہ په تد بيرسره بدل شولئ تقديرد چا

په جدائے به جليا نہ وو زړه تاب ګيرد چا

ما بہ تقديرلہ د تمام جهان تدبيرکړے وو

مقابل نہ دے د قدرت سره تدبير د چا

د لاهوتي ګوهر مسکن په نار د هجرنشي
ولې قدرت سره به څه وکړي تدبيرد چا

## *****سوز او ساز*****

دا راغلے ناراغلے دوبار راغے
دا شړلے نا شړلے روئے بار راغے
مسافر په سفر تلے وو مقيم شه
دا نادان د نادانے په کردار راغے
دا ليګلے وو ما خپل خدمت د پاره
دا د خپل غرض مقصود طلبدار راغے
بندګي څما مطلب وه له بنده نه
شرمنده د طغيانئ جفا دار راغے
غلامي څما مطلب وه له غلامه
رو سياه د عمل شرمسار راغے

## *****حقيقت حيات*****

که حيات دے خو حيات دے ستا حيات
بے لتا نه حيات نه لري حيات
حيات هغه دا چه مړ په ژوندے کيګي
ممکن څه يعني اثر دے د حيات

ذوالحیات چہ خپل حیات لہ ممکن واخلي

لہ هر تابہ شي بے تابہ ممکنات

## *****سوز او ساز*****

چہ ئے زړه وي پہ جمال پورے تړلے

مال اؤ سر ئے همګي وي پرے بیللے

تصور ئے خط وخال د خپل نګاروي

خیال د زړه ئے لہ اغیاره وي تړلے

ما سوی لہ یاره هر نقش عجیب وي

لکہ خار ئے وي لہ زړه بیرون وتلے

نشیمن خیال د دلبر د زړه پہ سر

لکہ ګل وي پہ چمن کښ ټوکیدلے

پہ هیڅ چارے ئے قرار د ضمیر نشی

څو ئے چہ یار پہ خپل ابصار نہ وي لیدلے

هره نغمہ ئے یو صدمہ وي اندرون

چہ بلبل د عاشقے وي چغیدلے

د مولا پہ غلامانو وي کرم

چہ خدمت د غلامئ وي ترمو ندلے

## ******سوز او ساز******

شګوفه ګل له ګلبن چرے جدا نشی
نوے بهار نوے ګل دے چه رسوی نشی

له خپله نازه نیازبین په ما ناز کوي
ځما نیاز غواړي رازئے بے نوا نشی

له تازګئ نازګئ شاخ دراز لري
موسم دګل دے بلبل پرشیدا نشی

د سترګوتور مے نسکور له پیغوره شولو
بے رنګه یار دے اغیار چه نما نشی

هجرخزان په لرزان کړه برګان دباغ
سرور روان دے بوستان چه افتا نشی

دوام دخیال مے شه حال ستا له خاله سره
غلام دے زار چه آزار ترے مو لا نشی

## *******سوز و ساز*******

ستا له سودا چه خالي شوے دے ضمیر ځما
په ذیان کاري مصور شوے دے تصویر ځما

ستاله غوغا چه بے غوغا شو د مجلس ملګري
له وجاهت نه خالي شوے دے تقدیر ځما

چې خوش بیان هر زمان ستا د شان کومه
له ډیر لذت نه عزیز شوے دے تحریر ځما

په خپل رحمت سره مرحوم کړه غربت د غریب
په عفا فت سره معاف کړه کل تقصیر ځما

څه چې کوے هغه به وشي د قدرت له رویه
هیڅ په قدرت کښې دخل نه لري تدبیر ځما

سرګرداني د غلامانو وي خدمت د مولا
بې له خدمت نه باطن نه لري تنویر ځما

*******سوز و ساز*******

دلبره مخ له ما نه مه پټوه نن مازیګر
بویه چې بیا به په نصیب شي ځما نن مازیګر

دا لویه ورځ به په نصیب سره مونده شي دوبار
دلبره خنګ له ما نه مکوه په نن مازیګر

لکه آختر به ګزرشي مبارک وخت د ویصال
دلبره نګ له ما نه مکوه په نن مازیګر

برقي رخسار لکه بجلئ غونده راوپړقه وه
دلبره پورته کا نقاب له مخه نن ما زیګر

له نازه واخله قدم نیغ راځه زما په طرف
دلبره پریږده غمازت د غماز نن ما زیګر

ک خپل خدمت لہ خدمتګارغواړي غلام یمہ ځہ

دلبره مکړه د بل چا فکرونہ نن مازیګر

***** تصور و شهود. *****

پہ سویدا کښں ستا سودا بلہ سودا نہ لرم

ځما غوغا دے ستا غوغا بلہ غوغا نہ لرم

نغمہ د اشهد ان لا الہ الاالله

ځما نوا دے ستا نوا بلہ نوا نہ لرم

د زاهدانو نصیب حور و قصور د جنت

ځما اهوا د ستا هوی بلہ هوی نہ لرم

حیات ممات دعاشقۍ دے خلاصہ دتوحید

ځما بقا ده ستا بقا بلہ بقا نہ لرم

لمن الملك بہ پہ عقبا ځہ پہ دنیا کښں وایم

ځما ندا الله ندا بلہ ندا نہ لرم

دغلامۍ وصف زیبا د غلام خپل زیور دے

ځما رضا د ستا قضا بلہ قضا نہ لرم

****** تصور و شهود ******

برابر کتلے نہ شم ستا رخسار تہ

خوک دزړه غوخے نیو لۍ شي انګارتہ

په تش نوم دے گزاره کولے نشم

بے حجابہ هو سیگمہ دیدار تہ

بنفشہ کہ د همت قامت بلند کړي

رسیدے نشي خود سروے اؤ چنار تہ

خراطین کہ د زمین عشق بازي کړي

لاس ئے نہ رسي د زلفو یوه تار تہ

چہ درون ئے تصوراسباب دعشق وي

حاجت نہ لري د حسن و بازار تہ

چہ پہ دم ئے بیماران دعشق رغیگي

حاجت نہ وي د هغو شربت آنار تہ

نہ خوگیگي پہ حلوا خولہ د سفرانے

دوصال سقمو نیا ورکړئ دے بیمار تہ

د غلام ستر گے لہ نمہ نہ وچیگي

لہ کوم وقت ئے چہ کتلي دي روئے بارتہ

## ******تصور و شهود*****

بے لہ غمہ بل هنر ما څخہ نشتہ

ستا مژگان دي بل نشتر ما څخہ نشتہ

لہ ازل نہ ده میده ځما پہ گوش

ستا جمال د بل خبر ما څخہ نشتہ

لہ تقدیرہ مقرر څُما پہ خیال

ستا جلوہ دبل نظرما څخہ نشتہ

دم ظاهرد لہ باطن دم سرہ ضم وي

تہ راهبر ئے بل راهبر ما څخہ نشتہ

د دوو دمو پہ ما بین وقفہ حیات دے

ستاحیات دے بل حیات ما څخہ نشتہ

غلام وائي اولین آخیرین تہ ئے

ستا طلب دےبل کشورما څخہ نشہ

******** کمال سوز *******

ستا دیداردے اخترځہ بہ کړم اخترسرہ

ستا لبان دي کوثری څہ کړم کوثر سرہ

لوټ څُما دزړہ سنګین نشي پہ لشکرمتین

ستا مژګان دی لشکري څہ بہ کړم لشکرسرہ

ستا مجلس زیبا ګنړم ګفتاردخوش زینا ګنړم

ستا الفاظ دی شکري څہ بہ کړم شکر سرہ

تورزلفان د تورہ شپہ سرہ رخسارد سرہ لمبہ

ستا جبین دے انوري څہ بہ کړم انور سرہ

ستا جلال دے بے زوال ستا جمال دے با کمال

ستا دربار دے اکبري څہ بہ کړم اصغر سرہ

دا مکان ځما مکان ستا مکان دے لا مکان

ستا لقا دے برتري ځه به کړم کمتر سره

بوئ د ما موندلے ده دما غو ته مے تلے دے

ستا طلب دے عنبري ځه به کړم عنبر سره

مال اؤ ملک د ټول جهان ماته د لا شي عيان

ستا رضا ده کشوري ځه به کړم کشور سره

پاتے شوه ځما رضا ستا قضا مے دا رضا

ستا غلامي افسري ځه به کړم افسر سره

*****اطيعوا الله واطيعوالرسول*****

---

تاب ځما د زړه به تاؤدغم سره بے تاب نشي

خو چه ستا ديدارنګاره کم له قوس وقاب نشي

با تصور ازثرى هم تا به حد لا مکان

درشهادت عاشقان را پاتے به حجاب نشي

بے له ذکره فکره چه نزول عروج خاصه لري

آب نا جاري به دے جاري لکه دولاب نشي

همت عالي هست که اندروحدت شهادت پرد

بے له يکتا خياله حمله زن به دا عقاب نشي

نه چه دوحدت په توسن له بے تقویٰ ردی قدم

دور دماغي به د دائر لکه رکاب نشي

رخصت مے پہ شفقت کړه دعبدالرازق مزارلہ ځم

ګل پسے ګلزار لہ ځم

زاري د پہ دلبار کړمہ صا حبہ عنایت کوه

نظر د مر حمت کوه

طرف تہ د عبدالشکور نا جبہ هدایت کوه

ډیر پہ لطافت کوه

قوت لہ قوي غواړم د یحيیٰ صاحب بهار لہ ځم

ګل پسے ګلزار لہ ځم

صا حب بہ داټک اوس سفارش پہ سعادت کوي

عین عدالت کوي

پہ لاس کښې دسعدي صا حب ځما نن حوالت کوي

لائق پہ لیاقت کوي

والی د ویلایت صاحب آدم صاحب بنور دے

نور علی نور دے

مجددالف ثاني سرهندي صاحب ولي منظوردے

ر حم د غفور دے

دهلے تہ د محمد باقي باالله صاحب بازار لہ ځم

ګل پسے ګلزار لہ ځم

مکان د امکني خواجه صاحب ته روانیګمه

ټول ترے قربا نیګمه

زیارت د مولانا محمد درویش ته میلانیګمه

زور ته ئے حیرا نیګمه

قمري دبخارا یم د محمد زاهد چنارله ځم

ګل پسے ګلزار له ځم

شیر د نقشبند عبیدالله خواجه احرار دے

عالم د سر اظهار دے

مشرب مولانا یعقوب چرخي ملک بخار دے

نور پکښې ا نبار دے

په زنجیردسلسلے علاؤالدین خواجه عطارله ځم

ګل پسے ګلزار له ځم

شاه د نقشبند و بخاري بهاؤ الدین ولي

فیض دے هردم جلي

تمام عالم ئے رنګ که توجهه کښې لري سروري

تاج ئے پسر عنبري

رخصت راکړه بادشاه دامیرکلال سو خارله ځم

ګل پسے ګلزار له ځم

مرشد دشاه سیدخواجہ بابا صاحب سماس دے

لاس مے ستا پہ لاس دے

خواجہ علی رامیتنی صاحب د کامل قیاس دے

ہیر ترے التماس دے

محمود فغنوی د معنوي شجر اثمار لہ ځم

ګل پسے ګلزار لہ ځم

توخہ د سفراخلم ځم عارف خواجہ ریوګر پسے

دل مے دے افګر پسے

ګرځم کوروکر عبدالخالق غجدوانی پسے

یوسف همداني پسے

بلبل د بوعلي یم فارمدي شګوفہ زارلہ ځم

ګل پسے ګلزار لہ ځم

جزبہ د کرامت ابوالحسن حرقاني پسے

فیض رباني پسے

مرید د با یذید ابن عیسی ئے بسطامي دے

دین لره حامي دے

پاره پاره جګر یم د جعفر صادق ګفتارلہ ځم

ګل پسے ګلزار لہ ځم

عمر م تیریگي په وطن کښ د غفلت مدام

روک م شو کلی آرام

اس یم فریادي شاه د قاسم علی نشان مدام

وه به کړي ځما نظام

پس به برابرد شاه سلمان فارسی دربارله ځم

گل پسے گلزار له ځم

ابا بکرصدیق چه شفیق یاردپاك حضرت دے

کان د کرامت دے

امیر المومنین د اولیاؤ صدارت دے

فضل و عنایت دے

د ده په واسطه خیرالامم[۲] نبي سردارله ځم

گل پسے گلزار له ځم

راغلے یم حبیب[۲] کبریا له رهائ غواړم

عفوه د باري غواړم

له شرد هرشریر نه پتا هم پناهي غواړم

مصر رحماني غواړم

گرانه خاتمه ده راکړه لاس رب الستار له ځم

گل پسے گلزار له ځم

طوطي دے د وحدت نقشبندي قفس حصارلہ ځم

ګل پسے ګلزار لہ ځم

حضرت کبش د سید پو ربابا سید علي تبارلہ ځم

ګل پسے ګلزار لہ ځم

******تجلی د صفات******

بل د ځما ستا تر میانہ دلربا حائل نشي

څو چہ سراؤمال م ستا پہ سربانددے ګائل نشي

حال دپریشانۍ بہ پہ عاشق هرګزغالب نشي

څو چہ پریشان پہ مخ د زلفو تورکاکل نشي

تیزبہ لکہ باد کوي رفتار د دلبرۍ پہ لار

کہ ئے بندے دواړه خپے دغیرالله پہ سلا سل نشي

څوچہ مکشوفۂ نکړي عاشق حجاب دتور ګیسو

انواردعاشقۍ بہ ئے د مخ ضیاءِ حاصل نشي

مرغ جان پرواز پہ بال وپر د تصور کوي

بے اندیشہ روح بہ د اصلي وطن واصل نشي

اخربہ دیونس غوندے نهنګ دنفسہ قۍ کړي

تہ کہ دیو نس غوندے یودم لہ خدائ غافل نشے

څو چہ فنا نشی لہ خودی نہ پہ خودۍ دخداي

پیر د طریقت بہ د کمال سره شامل نشی

لمن دسیدپوري کا مل نا قص غلام نیولے ده

بے لہ فضل الله بہ مقطوع دا منازل نشی

## *****تجلی د صفات*****

څہ پہ یار باندے شیدا یم یارځمادے مستغني

یارځما دے مستغني څہ پہ یارباندے شیدا یم

څہ دے خوبش پہ استغنا یم چہ منصب ددلبرئ دے

چہ منصب ددلبري ده څہ دے خوبش پہ استغنا یم

دویصال پہ تمنا یمہ لہ هجران نہ شوم ذرے ذرے

لہ هجران نہ شوم ذرے ذرے د ویصال پہ تمنا یم

څہ طالب دمطلب ستا یم بے لتا بل غرض نہ لرم

بے لتا بل غرض نہ لرم څہ طالب ستا د مطلب یم

څہ رضا ستا پہ قضا یم کہ مے سردرومي کہ مال

کہ مے سردرومي کہ مال څہ رضا ستا پہ قضا یم

څہ غلام دپاك مولا یمہ کړه نظر سیدپوري دلربا

کړه نظرسیدپوري دلربا څہ غلام د پاك مولا یمہ

## ****** تجلی ******

خدا یا را ولے موسم د نو بهار

بیا پرے ګل کړے ګل ناري ګل د ګل نار

بهره منده کړے هوا د ربیع خدایا

چه پرے ګل شي کا فوري ګل د کوکنار

شګفته کړه دګلاب غنچے ناز بینے

چه ظاهر شي دسري مستور اسرار

په فیضان کړه دروحي ریحان خړوب

عطرین کړه پر ے جبین څما د خوار

بریده کړه د لالا زبان له ویخه

چه خفي راز براز نکړے دنګار

د نرګس چشمان زمین ته کړه نسکور

چه ا فشا نګړ ی اخفی د شاه دیدار

چه عالم په سراخفی دلدار څما دے

څه باید چه شي اغیا ر تر خبردار

دغلام په غلامئ کښ زړه قلم شه

خدائ د نکه لکه دے څوک دل فګار

********تجلی********

غم د یار دے وي له ما سره هر دم

خوف د یار دے وي په ما باندے هردم

په هجران کښ دے خدائ ما نا امیدنه کړي

د و یصال امید څما دے څه محکم

منور دے وي ځما د زړه قنديل

تو ر د نشي دغفلت په لوی تور تم

خدائ د يو ساعت کښ ما بے فکره نکړي

نوم د يار د وي ځما په زړه رقم

بے د يار له شرين نامه نيک انجامه

نور د نکړي خدائ جاري ځما په فم

سيد پوري نسبت دخدائ نصيب ځما کړي

په دنيا عقبا د نشي له ما ګم

سيد پوري تعليم د خدائ ځما روزي کړي

طريقت د شريعت سره وي ضم

سيد پوری بنګله د خدائ لری آباده

په قصری زلزال د نشی منهدم

سيد پوري چراغ دخدائ لری روښانه

په نفسي ظلمت د نشي مظلم

سيد پورے سخی د خدائ لری آباد

په کرم ئے هير عالم شه مکرم

سيد پوري غلامه په خدائ حال حواله کړه

خدائ پوهيګي په حساب د بيش اؤ کم

## *****تجلی*****

غم پہ هغہ چا وي چہ هجران غوندے سفر لري

مجنون هسے رسوی وی چہ لیلی غوندے دلبر لري

بے نشانہ یار کړمہ بے شانہ پریشان پہ زړه

لطیف هغہ بے کیف دے چہ پہ کیفدعشق اثرلري

دیداردګل نګار هغہ بیدارهغہ بیدارکړي

چہ خیال دمسمی اثیم دلبردزړه پہ سرلري

کمال دعاشقئ دے پہ نیستے کښ پہ هستے دیار

نیست چہ پہ نیستئ شي دهستئ پہ درګزرلري

پہ کار جنتون ړک جامونہ د کوثر دی

یار ځما چہ لبان ارغوان سپینہ خولہ حوض کوثر لری

دا نا چہ ترک دنیا کہ د عقبا پہ تمنا سره

فدا بہ کړي عقبا لہ دلربا کہ څہ هنرلري

غم دخپل بدن خوري خاکي تن پہ تا عجز نہ دے

فقط پہ واسطے د روح خبر د خیر اؤ شر لري

هجران خو داڅوندوندے چہ مسجوندے جان میمون پکښ

ممات عین حیات آب حیوان غوندے اثر لري

د پیرکشمیري شمس نوري سید پوري یم غلام

یو کلام د خوار غلام دغلامئ تمام دفتر لري

## ***** رموز راز *****

برابر کتلے نہ شم مخ د یار تہ
برابر چہ مے کتلي دي اغیار تہ
تر قیامتہ مالہ دا شرم کافي دے
چہ لہ شرمہ کتے نہ شم مخ د یارتہ
دو بارہ د نظارہ دہ نظر نشي
تما شہ دہ ما سوی څما ابصار تہ
شبکور سرہ د کور ھغہ چشمان وي
چہ ئے فکر نظر نہ درومي خپل یار تہ
پہ تیزئ سرہ د تیز ھغہ بصر وي
چہ ئے فکر د باطن نظر وي یار تہ
سید پوري چراغ نہ خپل چراغ روشن کہ
تورہ شپہ دہ کہ ورځے طرف د یار تہ
سرھندي مجددي، صلہ پہ لاس کا
پس لہ ھغے ھوا سیکہ خپل نگار تہ
ھر سا عت کہ د سنت متابعت
رسیدہ شہ نبوی قدم آثار تہ
چہ روان شی پہ قدم د پاک حضرت
غلامي د مولا وائ دغہ کار تہ

چہ ختمت شي پہ وحدت کلام د شعر
شرافت د بیان وائ دے گفتار تہ
د غلام د غلامے نقصان معاف کہ
خدائ د بوزی نبی خیر الابرار تہ

## *****تو حید*****

ا ندرون مے د توحید نعره جو شیگي
یو صدا ده بے اختیاره پورتہ کیگي
فرش اؤ عرش بہ احاطہ کړي عنقریب
د تو حید نعره درون نہ پاتے کیگي
دا امکان یو کرشمہ د لبرئ ده
پر یشا ني د عاشقانو پر زیا تیگي
غلامي د غلامانو سلطاني ده
چہ رضا د سلطاني تر پیدا کیگي

## *****مقام*****

پہ تازگئ سہ ره تازه رازه لہ نآز
واخلہ قدم قدم لہ نآزه

لہ نازه واخلہ قدم لہ سازه پورتہ کہ فم
لہ رازه پرانزه فم فرازه کار د قلم
څما د غم فکر درازه واخلہ قدم قدم لہ نازه

په تازګئ سره تازه رازه له نآزه

واخله قدم قدم له نآزه

پریږده منزل دناسوت مقام د راز ملکوت

جلایت جبروت جمالیت د لاهوت

کمالیت فکر فرازه واخله قدم قدم له نازه

په تازګئ سه ره تازه رازه له نآز

واخله قدم قدم له نآزه

شرین رفتار کوه نن په دغه لارکوه نن

سیر د ګلزار کوه نن دیدار د یار کوه نن

ځما دروح شرین پروازه واخله قدم قدم له نازه

په تازګئ سه ره تازه رازه له نآز

واخله قدم قدم له نآزه

دارو مدار د وفا شه طلب دار د وفا

فنا شه نن له فنا مکوه کار د جفا

ځان خبردار که دزړه رازه واخله قدم قدم له نازه

په تازګئ سه ره تازه رازه له نآز

واخله قدم قدم له نآزه

فتنه انګیز مه شه فساد آمیز مه شه

عنادي تیز مه شه خون جان ریز مه شه

پہ قرارئ سرہ شہ فتنہ بازہ                واخلہ قدم قدم لہ نازہ

پہ تازگئ سہ رہ تازہ رازہ لہ نآز

واخلہ قدم قدم لہ نآزہ

عجز و نیاز تمام                نھادہ لاس پہ نام

ځہ یم د یار غلام                آدب کلیم د کلام

ځما بیان د سوز سازہ                واخلہ قدم قدم لہ نازہ

********عشق********

اوردعشق دہ چہ زیاتیگي پہ سکارو سرہ

رنج د دلبرئ دہ چہ زیاتیگي پہ دارو سرہ

نکړي انتظارلہ ډیرہ نازہ بے نیاز نگار

عمردعاشق دہ چہ تیریگي پہ خواروسرہ

تہ چہ هلوعا تہ نصیحت د صبوري کوے

دا نادر بیان دے نہ قبلیگي پہ زارو سرہ

صبر معنئ دا چہ کړہ طلب پہ قرارئ د شاہ

وصل دخوبانو شي موندے بردہ بارو سرہ

قدم د صداقت چہ عاشق پورتہ کړي لہ صدقہ نہ

عرش معلی تر لاندے کیگي منارو سرہ

گل د عاشقئ وو د غفلت پہ غرمو مړاوي تل

اوس بہ تازہ کیگي د سید پور پہ فوارو سرہ

ستا د درګدا دے غلام خير د توحيد غواړي

صاحب دلوئ دولت دورحميګي په ناروسره

ته چه ناغے دارے سترګے دواړه ماته واړه وے

قلم قلم درون شم د بڼرو په کتارو سره

************

---

پرے پيکر لخت جګر په مخ نقاب لرى

له نامحرم نه په حرم کښ تل حجاب لرى

چه د ديدار لايق ئے نه وي دلداري نکوي

چه د يارئ هم سيال ئے نه وي هيڅ ياري نکوي

چه غم جن نه وي د هغو هيڅ غم خواري نکوي

د غافلانو له غفلت نه بيداري نه کوي

له هر کم زات شوخ ريزا له نه اجتناب لري

پرے پيکر لخت جګر په مخ نقاب لرى

هغه رخسارچه وي بےچون ليدے په چون نشي

هغه لبان چه وي بيګون بوسه په ګون نشي

هيڅ نالائق د لائقانو په مضمون نشي

چه د ميزان ترازوکم وي هم موزون نشي

له قبائحو پاك دربار هغه جناب لري

پرے پيکر لخت جګر په مخ نقاب لرى

خو چہ د نفس لہ قبائجو بدن پاک نہ کړي

پہ تصفیہ د اطاعت سره ئے چالاک نہ کړي

پہ رفتار د هر منزل دهر افلاک نہ کړي

قطع هر یو د مکاني وطن املاک نہ کړي

تر هغہ پورے شاه لہ تا نہ احتجاب لري

پرے پیکر لخت جگر پہ مخ نقاب لری

تحت ثری نہ تر آسمانہ ناسوتي منزل دے

لہ دے آسمانہ تر صدره ملکوتي منزل دے

لہ منتهی تر عرش بل جبروتي منزل دے

لہ عرش نہ هم ترلامکانہ لا هوتي منزل دے

هاهوت باهوت دوحدت ډیر شرین درباب لري

پرے پیکر لخت جگر پہ مخ نقاب لری

پہ دلبرانو د عالم لوئ سلطنت لري

شرین بشر لکہ د سروے قد قامت لري

هم تار پہ تار سیاه زلفین پہ صباحت لري

پہ راست چپ زیروبالا ترے عطریت لري

لکہ غنچہ غوندے بدن بوئ دگلاب لري

پرے پیکر لخت جگر پہ مخ نقاب لری

چاه زنخ دسپین غب غب سره مطلق مزه کہ

زړه د مفتون لکہ یوسف پکښ معلق مزکہ

اسباب دعشق لکہ اخوان غیرمشفق مزه کہ

د دیدار تگی راه روان ناست پہ افق مزه کہ

د انتظار برقہ یوسف پہ ځائ د آب لري

پرے پیکر لخت جگر پہ مخ نقاب لری

د لوئ رحمت نہ امیدواره دگړنگ ملا دے

لہ دره مہ شړه غلام د کامل رهنما دے

مجددي نقشبندي سید پوري شآب لري

پرے پیکر لخت جگر پہ مخ نقاب لری

د غم شریک پایا هب علی تبار ځما

شاه د گیروالو مولانا دے تل غمخوار ځما

شرین احوال حاجی صاحب دے دکو یار ځما

پاشتو ملا ولی‌الله د زړه قرار ځما

یحیی بادشاه شان اسرار ډیر اقتراب لری

پرے پیکر لخت جگر پہ مخ نقاب لری

************

---

اے پہ خوب وده بختہ راپاسہ نقصا نیگمہ

لاس راکړه مرشده پہ نزول سره زیا نیگمہ

داشرين جنبش چه له اخلاص کړي په نازناز

دا روحي ليله دے ځه مجنون تر قربا نيگمه

دامهتاب آفتاب له کوم وجودزي جودانوردے

شاه سيد پورى دے کرامت يئ حيرا نيگه

کوم آب حيوان دے چه مرده زړه پرے زنده شي

بحر کشميري دے له امواج ئے احيا نيگمه

ځوانان دهندوستان پنجاب کشميرخراسان واړه

وصف سيد پوري په لسان کړے قربانيگمه

هغه دے فرهاد چه شرينئ کشميري غواړي

غردزړه سورے کړي رودد فيض ته عتشا نيگمه

خوک چه د اخلاص مصلے لنگ لکه ملوک کړي

مل به ئے بدرئ شي معنوى پر ضما نيگمه

ته چه کړنظر د معنوي بصر په کوم صدر

بيرون ترے خبائث شي جوش دنورته حيرانيگمه

حلال قصا ب دعشق کړه په خنجرداخلاص سرځما

کباب د محويت شو تيل د حب کبس بريانيگمه

نظر دمرحمت په لوئ شفقت پيره په ما کړه

چه پتنگ غوندے چاپيره ستا له چراغه جولانيگمه

تہ ئے د غلام رباني مربي صبح و شام

زندان ملک دګړنګ دے سید پور تہ روانیګمہ

خدائے د کړي رنګین ستا پہ بیان څما رنګین کلام

عاشق د پاك مولا ئے ستا دربار تہ میلانیګمہ

***************

---

پہ ګل مخ د بوراګان صباح بنړیګي

شنہ خالونہ شنہ طوطیان پہ کبښ چنړیګي

چہ را پورتہ کړے چشمان سیاستي

لہ د هشت ئے بلند غرونہ نړیګي

چہ د غوتہ پہ جبین قوس د ابرو شي

لہ ډیر خوفہ د کوهسار کانړي جړیګي

لہ ډیره نازه چہ قدم لہ خیالہ واخلي

سر تر پایہ ئے ذهبي زیور شنړیګي

نہ ئے نقص دبدن نہ د زیور شتہ

عا شقان ئے پہ دیدار کلہ مړیګي

سره لبان ئے خاص د سرو یاقوتو کان دے

سوداګر د چین ما چین پسے کړیګي

شین دندان ئے ګوهري جفت لړي دي

تلکا ني ګوهر شاداب دي نہ زړیګي

دے لہ چون مبراؑ یے کون رنگئ

چون اؤ کون پہ کښں هیڅ رنګہ نہ جوړیګي

کہ قاضیان د امکان ټول نکتہ بازي کړي

یو ذره پہ سوال جواب کښں نہ پړیګي

چہ صید کړے پہ ګولئ غمزے د ناز وي

مات سانګونہ د صیاد خپو کښں پرړیګي

پہ خپل ځائے لہ آسیا سرګرداني کړم

اندیخنے لکہ دانے پہ کښں وړیګي

دیګ د زړه انګار دعشق اوبہ د خیال

پہ توديدو دے پیره لاس راکړه سړیګي

حال احوال مے حوالہ پہ حول د خدائے دي

صفا حال چہ حوالہ شي نہ خړیګي

غلام وائ سید پوري نګاره راشہ

ستا پہ لار مے د امید سترګے غړیګي

**************

---

الله الله سرو دالان دلم الله الله پرورنور دلمم

د شاه سید پور جنکشن لہ ځمہ

ښار د وحدت تہ د توپے ټکټ کومہ

الله الله جنبش و آرام من　　الله الله منبع اکرام من

الله الله از نزولم بازیگیر　　الله الله درعروجم دستگیر

د طریقت گاڼي کښ راغلم

بابو ټکټ د سید پوري طلبوینه

الله الله فی الحقیقت نورحق

الله الله فی الطریقت فیض حق

له سید پوری میخانے راغلم

خم دسینے ډک دشرابو گرزومه

الله الله دا څه شرین کار دے

الله الله دا ذکر اذکار دے

الله الله عا شقان راوصلت است

الله الله تشنگان را شربت است

الله الله نور دین دان در دل است

الله الله عیش و آرام تن است

الله الله فی البلایا کافی　　الله الله فی‌البقا یاحاضر

الله الله فی‌الحقا ئق هادی　　الله الله فی الشدائد راشد

الله الله ستا کرم بسیاردے　　دا غلام تور مخے امیدواردے

تل کړم انتظار لوئ د کرم دے

الله الله ډیر راباندے غم دے

دا غلام تور مخے التجا لری

ستا کرم شامل وتہ سودا لری

*******سوز و ساز*******

د ما ورا هوا داریٔ کښې فنایٔ د وی

ستا توحید باقی د وی

توحیدباقی توحیدباقی توحیدباقی دوی ستا توحید باقی د وی

بل د خالق نوی ښوک بل د رازق نوی ښوک

ظاهرباطن کښې ستا ذاتی توحید جاری دے وی

ستا توحید باقی د وی

توحیدباقی توحیدباقی توحیدباقیدوی ستا توحید باقی د وی

یکتا پہ ذات کښې یٔ تہ یکتا صفات کښې ئے تہ

پہ هر یو زړه کښې صفاتی توحید باقی د وی

ستا توحید باقی د وی

توحیدباقی توحیدباقی توحیدباقیدوی ستا توحید باقی د وی

اسماءٔ حسنی لرے تل صفات اعلی لرے تل

پہ هر زبان کښې اسمائي توحید باقی د وی

ستا توحید باقی د وی

توحیدباقی توحیدباقی توحیدباقیدوی ستا توحید باقی د وی

پہ هر یو کار کښې یکتا پہ هر اختیار یکتا

پہ هر یو کار کښې افعالی توحید باقی دوی

ستا توحید باقی د وی

توحیدباقی توحیدباقی توحیدباقی‌دوی ستا توحید باقی د وی

د هر تاثیر حقیقت دے پہ قبضہ د قدرت

پہ هرتاثیرکښې آثاری توحید باقی‌دوی

ستا توحید باقی د وی

توحیدباقی‌توحیدباقی‌توحیدباقی‌دوی ستا توحید باقی د وی

د ما ورآ هوا داریٔ کښې فنایٔ دوی

ستا توحید باقی د وی

توحیدباقی‌توحیدباقی‌توحیدباقی‌دوی ستاتوحیدباقی‌د وی

پہ بندگیٔ کښې مدام پہ زندگیٔ کښې مدام

پہ هریونیت کښې توحیدی غرض باقی د وی

ستا توحید باقی د وی

توحیدباقی توحیدباقی توحیدباقی‌دوی ستا توحید باقی‌د وی

د ما ورآ هوا داریٔ کښې فنایٔ دوی

ستا توحید باقی د وی

توحیدباقی‌توحیدباقی‌توحیدباقی‌دوی ستا توحید باقی د وی

حیات مردن د غلام کفن دفن د غلام

هر یو ګفتن کښ باری ستا توحید باقی د وی

ستا توحید باقی د وی

توحیدباقیتوحیدباقیتوحیدباقیدوی ستا توحید باقی د وی

د ما ورآ هوا دارئ کښ فنائ دوی

ستا توحید باقی د وی

توحیدباقیتوحیدباقیتوحیدباقیدوی ستا توحید باقی د وی

آمین آمین باقی د وی ستا امن باقی د وی

***************

هریوکلام ده خپل کلام ځما کلام لره خپل فضل مدام لره

هر یو کلام د خپل کلام ځما نظام لره خپل فضل مدام لره

فضل مدام فضل مدام فضل مدام لره

خپل فضل مدام لره

حکم روان د قرآن فرمان بیان د قرآن

هریو لغت باشرافت دخپل کلام لره

خپل فضل مدام لره

فضل مدام فضل مدام فضل مدام لره

مظهر هائي ارادت ولیان خرق عادات

پہ هرتاثیر کښ موئثرمضمون مدام لره

خپل فضل مدام لره

فضل مدام فضل مدام فضل مدام لره خپل فضل مدام لره

هر تلاوت د قرآن هم بلاغت د قرآن

په فصاحت په وضاحت سره تمام لره

خپل فضل مدام لره

فضل مدام فضل مدام فضل مدام لره خپل فضل مدام لره

نوری انوار لره تل لیل و نهار لره تل

ظاهر باطن کښ په عمل زړګے ګل فام لره

خپل فضل مدام لره

فضل مدام فضل مدام فضل مدام لره خپل فضل مدام لره

فقیر زیارت مه منه پیرے حجت مه منه

اتمام د دین ده په قرآن قرآن تمام لره

خپل فضل مدام لره

فضل مدام فضل مدام فضل مدام لره خپل فضل مدام لره

امید لرم لہ تا نه نوید لرم لہ تا نه

په خپل قرآن باندے محکم غریب غلام لره

فضل مدام فضل مدام فضل مدام لره خپل فضل مدام لره

هر یو کلام د خپل کلام ځما کلام لره

خپل فضل مدام لره

فضل مدام فضل مدام فضل مدام لره خپل فضل مدام لره

*************

يا خو برق دے چہ ځليګي پہ آسمان کښں

يا ستا مخ دے چہ پړه قيګي پہ دالان کښں

تصور ستا د جمال ځما کمال دے

برے شوے يم د خيال پہ امتحان کښں

دا آسان منزل ځما د اسم ذات ستا

چہ لتا مے تاثير بياموند پہ رضوان کښں

تا پخپلہ خپلہ لار ماتہ نما کړه

چرتہ ځہ اؤ چرتہ تہ پہ يو مکان کښں

دا خو عين عنايت د قدرت پاك دے

چہ مکان ئے کړه مکين پہ لامکان کښں

چہ مکان لہ ئے مقام خپل لامکان کہ

هزار شکر د غلام دے پہ مکان کښں

****************

غم د ستا هر دم ځما همدم وی چرتہ نور نشی

څو چہ تن لہ جان ځما پنهان پہ خاک د ګورنشی

غم د يار ويصال دے کہ دعشق نزاکت لری څوک

پہ غم سوے عاشق بہ لہ معشوقہ نہ مهجورنشی

چین ستا دجبین ځما سنګین زړګے غمګین کہ
روغ بہ م د سترګو دواړه جرحت ناسور نشی

تطمین دزړه خزین بہ پہ تمکین شی ددلبر ځما
سفرد مسافر بہ بے لہ سیره نہ مقصور نشی

مخ د اغیار آئینہ جلوه دے مخ د یار پہ کښ
بدر انور مخ د یاردیدارد هر شب کورنشی

دګناه تورکړے مخ بہ دصابون پہ چکئ سپین نشی
خو چہ ما لیده پرے د تویے مشک کا فور نشی

جی بہ هلہ جی شی‌د استاذ کہ راجع حق تہ شی
پہ نوم داستاذ جی ګړنګ ملا چرے مغرور نشی

نن کړه خپل مخ تورغلامہ جاړه ندامت سره
د اښکو پہ سیلاب وینځلے مخ بہ صبا تورشی

***************

---

آخر بہ پاتے شے لہ مآنہ ځما ځما ئی
ازلی شان ابدی توآنہ ستا خدائی

شبینہ روز مدام نوی د نوی نظام
کل یوم هو فی شان ده ستا خدائی

چہ شتہ شی نیشت شتہ بہ شی نیشت
وی بہ همیشہ بی نقصانہ ستا خدائی

ازلی شان ابدی توآنہ ستا خدائی

آخر بہ پاتے شے لہ مآنہ ځما ځما ئی

اول فنا د عالم بیا د بقا د عالم

کل ندے علیها فانہ ستا بقا ئی

آخر بہ پاتے شے لہ مآنہ ځما ځما ئی

ازلی شان ابدی توآنہ ستا خدائ

نہ بہ شکوت وی د چا نہ بہ دولت وی د چا

لمن الملك جلالی شان ستا ندائی

د غلامئ د پارہ کافی دہ ما لہ یارہ

رحیم کریم صاحب غفران ستا مولائی

*****************

---

همیشہ د ستا قضا ځما رضا وی

پہ ظاهر کښ د غوغا باطن سودا وی

لہ د خیالہ بل حال نہ غواړم درون

کہ وی صبح پہ بیان کښ یا مساوی

پہ گردش دلیالی م خالی نہ کړي

کہ عشرت وی کہ رحلت وی خو پہ دا وی

ما لہ دا دولت لہ عمرہ سرہ بس دہ

چہ م ستا جمال پہ زړہ کښ هویدا وی

هر دولت لره زوال په دنيا شته ده

بې له عشقه چه عاشق لره بقا وی

په تاراج به شی تالان بازار د دهر

ستا د حسن په بازار کښ به غوغا وی

عاشقان به سر گردان وی له حيرته

ستا د مخ په تماشه به تمنا وی

که غلام کړي په خدمت کښ خپل غلام

دا به عين عنايت ازلی ستا وی

*****************

---

له سر سرتوره رازه نن له دروازې مينه

بې ستا له غمه نشته ما کره بل څوک دننه

له سر سر توره را ځه ځما غم خوره را ځه

له خپله ګوره را ځه ځه يم مشکوره را ځه

له دواړو سترګو مې د اښکو په مخ ځی رودونه

بې ستا له غمه نشته ما کره بل څوک دننه

په ظاهر روغ يمه درون ناروغ يمه

شپه کښ فروغ يمه په ورځ نا فروغ يمه

په غيرالله د مولا نکړي ما هر ګز خادمنه

بې ستا له غمه نشته ما کره بل څوک دننه

کہ غم بسیار لرم خو د خپل یار لرم
زړه نا قرار لرم ستا انتظار لرم

یو ځلہ راشہ پہ خندا ځما تر سنګ نیازبینہ

بي ستا لہ غمہ نشتہ ما کره بل څوک دننہ

د تصور پہ دولت موندلئ ما ده مسرت
پہ حقیقت کښ عزت شتہ دمولا پہ نصرت

تکیا توکل م د مولا پہ وحدت دي یکبینہ

بے ستا لہ غمہ نشتہ ما کره بل څوک دننہ

ګناه بسیار دے ځما کار استغفار دي ځما
رب الغفار دے ځما عافی ستار دي ځما

د خوار غلام د غلامئ عذر تقصیر کوینہ

بي ستا لہ غمہ نشتہ ما کره بل څوک دننہ

****************

---

پتا نہ یم پہ چا یمہ یاره کہ شیدا یمہ
یاره کہ شیدا یمہ پتا نہ یمہ پہ چا یمہ
ستا نہ یم د چا یمہ وایہ کہ جدا یمہ
وا یہ کہ جدا یمہ د ستا نہ یم د چا یمہ
دنیا کښ ځہ دنیا یمہ لہ عقبا سره عقبا یمہ
عقبا سره عقبا یمہ دنیا سره دنیا یمہ

خیر من ا لاولی یمہ　　　اعلی رب العلی یمہ

اعلی رب العلی یمہ　　　خیر من الاولی یمہ

را ځہ لتا رضا یمہ　　　پہ کرم سرہ رضا یمہ

پہ کرم سرہ رضا یمہ　　　را ځہ لتا رضا یمہ

پہ گناہ سرہ رسوا یمہ　　　لہ عزر نہ گویا یمہ

لہ عزر نہ گویا یمہ　　　پہ گناہ سرہ رسوا یمہ

ځہ د غلام د کبریا یمہ　　　منحرف لہ ماورا یمہ

منحرف لہ ماورا یمہ　　　ځہ غلام د کبریا یمہ

پہ مرید امید امید یمہ　　　لہ امیدہ مریدا یمہ

لہ امیدہ مریدا یمہ　　　پہ مرید امید امید یمہ

لہ عمل نہ بے نوا یمہ　　　پہ امل کبش بانوا یمہ

پہ امل کبش بانوا یمہ　　　لہ عمل نہ بي نوا یمہ

هدایت باندے تکیا یمہ　　　عنایت باندي بشرایمہ

مغفرت باندے بشرا یمہ　　　هدایت باندي تکیا یمہ

کہ حیات یم کہ موتایمہ　　　کہ بیدار یم کہ نومایمہ

پہ فطرت سرہ ثنا یمہ　　　کہ قرارکہ ي غوغایمہ

ځہ د غلام د کبریا یمہ　　　منحرف لہ ماورا یمہ

منحرف لہ ماورا یمہ　　　ځہ د غلام د کبریا یمہ

****************

---

زړه ناقرار په قراري ځما قرار نه شه

په خون خواری سره دلدار ځما دلدار نه شه

ډیر جهالت دي ځما لوئ غمارت دي ځما

دا حماقت دي ځما دا کها لت دي ځما

په بیدارئ سره درون ځما بیدار نه شه

زړه ناقرار په قراري ځما قرار نه شه

لیک د تقدیر ځما کار دے تقصیر ځما

څه دے تدبیر ځما امر آمیر ځما

چه په یارئ سره اغیار ځما غم خوار نه شه

زړه ناقرار په قراري ځما قرار نه شه

ځما د خولي لفظونه دریاب د غم موجونه

په ماورا له ګونه هم ما سوا له چونه

په نګارئ سره نګار ځما نګار نه شه

زړه ناقرار په قراري ځما قرار نه شه

غلامی ستا غلامه نظامی ستا نظامه

ګلفامی ستا ګلفامه خیال فکر ستا دوامه

انتظارئ سره خپل یار ځما دیدار نه شه

زړه ناقرار په قراري ځما قرار نه شه

په خون خواری سره دلدارځما دلدار نه شه

## *****سوز ساز*****

ستا پہ سودا پسے ناروغ یمہ ځہ غورددارو کوہ

د عاشقئ پہ رنگ مصبوغ یمہ ځہ غورددارو کوہ

والی والا ئے تہ علی اعلی ئے تہ

ھادی اھدا ئے تہ شافی اشفا ئے تہ

پہ تصورسرہ مبلوغ یمہ ځہ غورددارو کوہ

بیتاب لہ تابہ شوم بے ناب لہ نا بہ شبوم

خوف لہ عزاب شوم مل لہ مرتابہ شوم

لکہ ماشوم غوندي مکلوغ یمہ ځہ غورددارو کوہ

استقلالی دے عرفان اجتهادي دے عرفان

دریم آسمانی دے عرفان ھم امکانی دے عرفان

پہ شریعت سرہ مدبوغ یمہ ځہ غورددارو کوہ

استقلال اصل آدم اجتهاد نسل آدم

الھامت وصل آدم امکانت فصل آدم

پہ شھادت سرہ مفروغ یمہ ځہ غورددارو کوہ

پہ رحم وکړہ نظر لہ فضلہ ماکړہ خبر

د معرفت پہ ھنر درون ځما کړہ خبر

دغلامئ پہ سیخ داغ دوغ یمہ ځہ غورددارو کوہ

***************

## ****رموز راز****

ځما د وصل طلب داره خریدار نه ئے
ځما د حسن هواداره وفادار نه . ئے

تیره شوه شپه د راز خبرنه شوي له رازه
ځما د ناز کرشمه داره ته بیدارنه ئے

خدمت ځما دے دفین ستا په فطرت کښ خزین
له جهالت نه غفلت داره ته هوشیار نه ئے

غفلت آمیز کارونه مکړه قصدا زبونه
معلومه شوه چه له قرآنه خبردارنه ئے

والی برحق یمه ځه هدا مطلق یمه ځه
غلام ناقصه له اخلاصه خدمت ګارنه ئے

د جلالت تصور د جمالت تفکر
په ذات اقدس کښ شهادت که ته بی کارنه ئے

د ګړنګوال نظمونه له توحیدي مضمونه
د ماورا هوا داریٔ ته هوا دار نه ئے

## **رمو ز راز**

قد او قامت ستا خود قیام د قیامت لره ده
ترس وانصاف د عدالت انتقامت لره ده

خرخ و خوراک بس پوشاک آب ونان

د پاك حاكم په حكومت كښ عبادت لره ده

دید و دانش تمیز د خیر اؤ د شر

په نوعیت کښ د انسان انسانیت لره ده

فهم و ادراك عقل مندی علم بازي فكرونه

د مسلمان انقیادت اسلامیت لره ده

عالم خلق چه له دي فرش نه تر عرشه وینم

هر یو مظهر د مهیا وحدانیت لره ده

هر یو ممکن دے مبتلا په ابتلاءِ د توحید

غلامه نوم د غلامئ غلامیت لره ده

***رموز راز***

د بے بدل په بدل مه غواړه بدل د عمل

له بے بدل نه بدل ښائ د عمل په بدل

تجارتی مکوه زیادتي مکوه

جفا یتی مکوه بي مروتي مکوه

بهل بدل ده بدل بهل بدل ده بدل

مکوه خلل د عمل مکوه خلل د عمل

د عبدیت په دستور ربوبیت که منظور

د احدیت نه په نوررفع ظلمت که د کور

دے وبل بے طلل دے وبل بے طلل

مہ غواړه زلل دعمل مہ غواړه زلل دعمل

لہ دمکان سفر پہ لامکان کښ مقر

پہ گام د خیال کہ گزرپہ راه گذاد هنر

روان عجل بے اجل روان عجل بے اجل

مکوه کسل د عمل مکوه کسل د عمل

غلام شاه شاهآن بہ کوي شاه روآن

کلام شاه جهان بہ شاه راه رسان

بلا علل بے ملل بلا علل بے ملل

مکوه د غل دعمل مکوه د غل دعمل

د بے بدل پہ بدل مہ غواړه بدل د عمل

لہ بے بدل نہ بدل ښائ د عمل پہ بد

****رموز راز****

لہ نازه کیږده نازنین قدم پہ سر ځما

لہ نازه خنده نازبین قدم پہ سر ځما

صبر د کار د سلوک خبر د یارد سلوک

شکر د یار د سلوک خطر حصار د سلوک

مدام دخیال پہ بام نشین قدم پہ سر ځما

لہ نازه کیږده نازنین قدم پہ سر ځما

شرط د نظر پہ قدم سر هم زمین وتہ خم
هوش کہ بیدار پہ قدم مکړه ګفتار پہ فم
پہ پټہ خولہ یګانہ بین قدم پہ سر ځما
لہ نازه کیږده نازنین قدم پہ سر ځما
د بازګشت دار مدار خلوت د یار اغیار
پہ ناستہ ملاستہ رفتار کوه طرف تہ د یار
د بل وطن مکان مکینہ قدم پہ سرځما
لہ نازه کیږده نازنین قدم پہ سر ځما
لبان کہ دواړه بند چشمان کہ دواړه بند
غوګونہ دواړه بند خپے لاس کہ دواړه بند
ذانوکہ مات قبلے تہ کینہ قدم پہ سر ځما
لہ نازه کیږده نازنین قدم پہ سر ځما
خاونده پاکہ غلام آمن ایمان کہ تمام
دمعرفت پہ انعام خوشحالہ دے کہ مدام
لہ قدرت پاک باریک بینہ قدم پہ سر ځما
لہ نازه کیږده نازنین قدم پہ سر ځما

## *****رموز راز*****

هر یو ګران خو کلہ ګران شی بیکران
پہ عاشق د عاشقئ ګران نوی ګران

هر یوکارکښ شی مونده حصہ د نفس

نہ وی عشق کښ دخپل ځان نام ونشان

حلاوت د دلبرئ کہ د پکار وي

سید پوری با با لہ ځہ خیرے گریوان

کہ خوشبویہ د معنی گلونہ غواړي

ځہ گلزار تہ د سیدپور راوړه ریحان

کہ غلام ئے غلامی د لہ پہ کار وی

د سید پور مولی پہ در کښ شہ دربان

**************

ځان جهان سوختہ چہ شی پہ نارد لا الہ سره

هلہ بہ قربت د وحدت بیا مومی مولا سره

ځان چہ دمجنون غوندے بیرون لغیرالله کړے نن

هلہ بہ واصل شي پس لہ مرگہ د لیلی سره

خدمت دبندگئ مدام ښائیگی لہ بنده غریب

کار دطغیانی منا سب نہ دي لہ اعلی سره

هر کلہ چہ رام شی پہ ارام توسن دنفس امار

پس بہ شی واصل شاه سواردروح رفیق اعلی سره

لا چہ شی پہ لادالہ ما سوی الله لہ زړه

هلہ بہ تمکین شی ستا پہ نوردالاالله سره

شمس سیدپوری چہ لہ برج ضمیرہ شی طلوع
تن بہ شی روشن هلہ د فیض پہ تجلی سرہ

طوق دغلامئ چہ د غلام پہ گردن واچوی
هلہ بہ خلاصیگي پہ کرم دخپل مولا سرہ

***رموز راز***

اور د عشق دے چہ پہ زړہ کښ م بلیگي
شین لوگي دے لہ افلاکونہ تیریگي

بل مشال وو ظلمانی خانہ کښ راغي
پہ هرگوټ کښ یئ نورانی اثر ځلیگي

نا سوتی منقل پہ اور د عشق شہ گرم
تاؤ تاب یئ لا هو تیا نو تہ رسیگي

هغہ خلق چہ باشندہ د ملکوت دي
کرامت د عشق کامل تہ حیرانیگي

ساکنان د جبروت الوداع وایئ
ملنگان د عشق لاهوت تہ روانیگي

چہ چراغ لا مکاني د یار نما شی
پتنگان د لاهوتی پر شغلہ کیگي

نورانی پنج کم څلویخت زرہ حجابہ
چہ شی قطع وصلت هلہ حاصلیگي

ظلمانی پنج کم څلويخت زره حجابه
چه شی رفع زړګئ هله ژوندي کيګي

ظلمانی پردي په زړه دي لاندي باندي
د کامل په توجه سره به شليګي

نورانی برقع پرتي په مخ د يار دي
د کريم په لوئ کرم به بيرته کيګي

نورانی بصر د عشق دے نظر باز يئ
په پردو کښ يئ درون نظر لګيګي

آفرين د اهل قلبو په روزګار شه
چه يے هر مطلب له قلبه وصو ليګي

شاه باشی د اهل قلبو په فنی شه
غيرالله نقش يئ زړه کښ نه ځائيګي

صدرحمت داهل قلبو په قوت شه
چه دنيا ورته ناخن غوندي خکاريګي

تعجب داهل قلبو په بقا ده
چه بادشاه يئ د جهان زړه کښ ځائيګي

آفرين د اهل قلبو په حکمت شه
چه مستور اسرار د غيب پر څرګنديګي

آفرین داهل قلبو پہ همت شہ

لہ جهان نہ لکہ باد غوندي تیریګي

خدایہ خومره مستغنی دي اهل قلب

چہ تمام عالم یک جو ورتہ خکاریګي

جولا ہیر قیمت لري چہ ہے منظور شی

دا جهان ورتہ پہ جو نہ منظوریګي

دا تقوی نہ ده چہ کسب روزګار پریږدي

تقوی دا چہ خدائ پہ هرحال کښ یادیګي

اهل قلبو لہ خدائ دا دولت ورکړ دي

نہ چہ هر سړي پہ دي کیمیا پو هیګي

آفرین د اهل قلبو پہ لوئ علم

چہ تمام علوم یئ زړه کښ معلومیګي

علم دا چہ عشق توحید تر نہ معلوم کړی

هسے نہ چہ لوئ مفتی قاضی جوړیګي

آفرین د اهل قلبو پہ قلم شہ

چہ یو نقطہ یئ تام دفتر سازیګي

نقطہ دا چہ پقلب لہ عشق پریوزی

پہ ثنا صفت د یار خپل نہ مړیګي

کہ څہ وایئ د اشنا خالونہ ستایئ
هسے نہ چہ د کوکری غوندي غپیګي

څہ کوکري د زماني عبث غپیګیمہ
ستا پہ فضل بہ م سپړدي خولہ چپیګي

تہ ځما پہ غبی مالہ ماتي نہ کړي
دواړه جامي م پہ فضل و رحمیګي

هسے راز داهل قلبو دے مستور
چہ کرام کاتبین پري نہ پوهیګي

هسے لوئ رمز د خدائ د اهل قلب
پہ ما بین دي چہ ملک پرنہ پوهیګي

هرعمل لره وي اجل مو جل هم
لاس پلاس داهل قلبو اجرت کیګي

د اندام عمل کښ فصل دقلب وصل
وصل فصل پہ څہ رنګ برابریګي

اهل قلبولره لوئ توفیق دخدائ ده
چہ پہ عرش کښ یئ دراز خبري کیګي

دا خو زړه ده چہ پہ باغ وراغ پروازکړي
کلہ حال دمیغ ماغ تہ میلانیګي

کلہ خدائ تہ کړي میلان کلہ هوا تہ
کلہ لیغ باندي خفہ پہ لاغ خندیګي

اوړیدل معنی دقلب خبردار شہ
کوم جانب تہ یئ بیا یئ بوتلے کیګي

کہ د خدائ طرفتہ یئ یو ګړئ روان کړي
دا جانب د غیرالله ترینہ هریګي

اؤکہ طرف د غیرالله وتہ ئے مخ کړي
پاك دربار د پاك مولا ترے پاتے کیګي

پہ قوت دخدائ توفیق غواړم غلامہ
خراب زړه پہ حول دخدائ بہ قابو کیګي

لګ بیان م دزړه ګوټی دربیان کړه
پوره حال بہ لہ پوره نہ پوره کیګي

یعنی زه د سیدپوری ولی دلبار تہ
پہ طبیب د زړه د زړونو علاج کیګي

کہ د نور د زمانے دلتہ کښ بیاموند
پر زخمی زړګی لہ درده قلاریګي

اؤکہ خدائ راوستہ حاجی دحرمینو
د اسرارو کار لہ ده نہ صادریګي

اؤکہ یحیی بادشاہ ثانی اسرار ملا
کړی نظراحوال د هیچا نہ بندیگي
اؤ د گیروال مولانا منزل آگاہ دہ
شرین حال سرہ حال قرب تہ رسیگي
اؤ شیردخدائ پایا صاحب چہ حملہ وکړي
پہ سجین کښ تر حقیقت نہ پا تیکگي .
کاملان خلیفہ گان سیدپوری پیر دي
لہ هریونہ غلام گړنگ ملا ځاریگي
کارخانہ د سیدپوری پہ قلب جاری دہ
هر هنر پہ کښ د قلب پہ زور چلیگي

**** رموز راز ****

ځہ بہ ممکن تہ پہ ظاهر کښ مظاهر وایمہ
علم باطن تہ پہ باطن کښ سرائر وایمہ
کہ داظاهر کړم پہ ظاهر باندي ظاهر حوالہ
قیام مقام د ماورا ؤ تہ مسافر وایمہ
کہ نورانی شمس نوری دسیدپوری شي نثار
ځہ بہ خدمت د غلامئ تہ نوادر وایمہ
هغہ یکتا هغہ آقا هغہ لقا ځہ شولہ
ځہ بہ کثرت تہ دکلفت بلا صادر وایمہ

دغم، خوارئ ددلدارئ برده بارئ هيڅ نشته

ځه به دوستئ ته د نيستئ کل غدائر وايمه

هغه دلبر لخت جګر ځما رهبرده هنر

جلوه دنور شاه سيدپورته به ماهر وائيمه

غلام حاضرده که خدمت د غلامئ په کوي

ستا په خدمت کبس هرخادم ته ځه قاصروايئمه

***************

---

صبا را ځمه نن اوزګار نه يئمه

ته ځما يار يئ ځه اغيار نه يئمه

نن له رقيب سره صبا حبيب سره

بشريت لرمه خصوصيت لرمه

نن له رقيب سره صبا حبيب سره

لکه د ګل غوندي بے خار نه يئمه

بشريت لرمه خصوصيت لرمه

په يک رنګئ سره رنګ دار نه يئمه

ګوشه ګيري مکوه خود غرضی مکوه

ته وفا دار ځه جفا کار نه يئمه

سياست ستا يئمه ځه رياست ستايئمه ځه

له ما ورا نه طمع دار نه يئمه

آخر بہ راشمہ ځہ آخر بہ ستا شمہ ځہ

ستا لہ فرمان گوشہ کنار نہ یئمہ

کلہ بہ راشی بهار کلہ بہ گل شی گلزار

بي لہ بهاره ځہ گلزار نہ یئمہ

غلامی ستا کومہ نیک نامی ستا وایئمہ

د غیرالله ځہ خدمت گار نہ یئمہ

****رموز راز****

دا ځما زهر پہ ما کښ دفینہ دی

دا ځما تریاق پہ ما کښ خزینہ دی

دا ځما هکذائي صورت حقت

ے ځما لہ خواستہ ما کښ دیرینہ دی

ے ځما لہ استغاث هوائي نہ

آب ونان ځما پہ ما کښ شبینہ دي

د توحید در یاب کړے ډیرے کشتئ غرقے

فکر خیال ځما پہ ما کښ سفینہ دی

زړه جهازوحدت انجنړ فکر ډرایور

تیل رفتار اؤ تار برقی ځما رگ روحینہ دی

دجنت اؤد دوزخ غلامی نہ کړم

نار اؤحور ځما پہ دے کښ رهینہ دی

دجگرپہ غر باران دغم وریگي

دا ځماعروق سیلاب جو شینہ دی

ړیر ځوانان اؤ بوړگان پہ کښ فنا شو

د غلام غمونہ واړه رودینہ دی

**********

---

چہ اغیار تہ د خپل یار گفتار براز کړی

بیھوده بہ حقیقت بیان د راز کړی

فراموش کړه دغہ جوش دغہ خروش خپل

نادانی ده چہ اغیار شریک د راز کړی

لطیفہ د خپل دانش ظاهره مکړه

بے هنگامہ دل خراش بہ دلنواز کړی

غلامی د غلامانو راز د یار دے

مظھری د خپل مولی غلام نواز کړی

***رموز راز***

---

لا خو برق د لا الہ دے چہ پړه قیگي

ماورائي لہ پرتو نہ محوه کیگي

خود ناسوت لہ ضرورت دغہ بجلی ده

چہ شرکت بدعت ناسوت کښ پیدا کیگي

حقیقت چہ لہ ناسوتہ رهیده شی
نورانی شی ملکوت کښ پاتےکیګي

ثمره د الاالله پہ ملکوت دے
شجره ئے جبروت کښ جلوه کیګي

صفتیاصول پنجہ کښ د لاهوت دی
لہ قدرت نہ قدیمی دی نہ زېږیګي

اطاعت محمدی لوئ دلالت دے
بے دلیل ځوک تو حید تہ نہ رسیګي

دغلام د غلامئ باغ دے تازه وی
پہ آمان بہ د آمین امانہ کیګي

***رموز راز***

زړه دیوانہ کیګي د هجران غوندے سنګسار سره
روح دے بیداریګي موحد غوندے رنګدار سره

تن بدن خفتن ګفتن خوردن کښ عدالت کوه
زړه نہ بیداریګي د حیوان غوندے شخوندارسره

ولولہ ئے اندرون زلزلہ شرک زبون
روح ده چہ مستیګي د توحید غوندے چنګدار سره

من نہ دارم اعتبار من نہ دارم انتظار
روح دے هوسیګي د زیور غوندے شرنګدارسره

ازغلامی غلغلہ افتادہ جان رابلبلہ
خودیے خودہ کیگي د دید اغوند بنگدار سرہ

***موز راز***

چہ د خدائ فضل کرم شی وردوسار
پہ ساعت کښ یارلہ یارشی ھم کنار

چہ مکتوب وی پہ ازل سوزان د چا
ھغہ نہ مومی دلبار دخپل نگار

پہ پرسان پرسان عالم ځی ھندوستان تہ
ماپۂ کور کښ معلوم نہ کور د یار

خلقو یے رھبرہ لار د منزل پرے کړہ
ما رھبر پسے بیا نہ موندلہ لار

خلقو یے روئ بارہ وصل کړہ وصول
ما روئ بار سرہ وونہ لید مخ دیار

خلقو یے تکلیفہ بیا موند ډیر دولت
ځہ پہ ډیر تکلیف کښ ډیر یم خواروزار

خلقو قطع جیل خانے کړے خودرھا شو
ځہ د نفس پہ جیل خانہ یم گرفتار

دا ځما دبخت قصوردہ بل څہ نہ دی
چہ اورہ پہ روز ازل دے نشہ بیدار

د سید پوری ما لمن نیسل دہ

امید خدائے چہ بخت ھُما کاندی بیدار

سید پوری مولی یا ستا غلام راغل دے

دے فرمان تہ دخدمت پہ انتظار

***رموزراز***

د دلبر د کرشمے مظھر ممکن دے

د قدرت عکس ممکن کښں معلومیگي

دا خو لویہ سبیلہ دہ د توحید

مو حد تہ لہ عبرتہ حا صلیگي

د مولی د مولائے مظھر غلام دہ

بے غلامہ مو لا ئي نہ ظاھریگي

****رموزراز****

ما پرون لیدلے ستا رخسار زرین دے

تابندہ پہ تاؤ تاب کښں پلو شین دے

ھمیشہ بہ لائقان وي نگران ستا

پہ غفلت سرہ غا فلہ کھترین دے

ھیځ ئے مثل لہ مثالہ سرہ نشتہ

بے لہ رنگہ بے لہ گونہ بھترین دے

ځما خیال دے ستا لہ خیال سرہ پیوند وی

لکہ تاک لہ مجاور نہ شجرین دے

ځما خیال لہ خپلہ خیالہ جدا مکړے

تصور ستا د جمال ځما قرین دے

قرینہ یو خزینہ د غلامئ دہ

غلام ځکہ غلامئ کښں خوش ترین دے

*****رموزراز*****

---

پرون د باغ پہ طرف تلے وم نن بہ راغ تہ ځم

پرون پہ راغ کښں پاتے شوے نن بہ باغ تہ ځم

دویصالت پہ ھواستا زړہ ھواګیر وو ځما

پرون پہ یخ کښں ماندہ شوے نن بہ ماغ تہ ځم

د جدائ آہ فغان دے پہ زار زار کړمہ ځہ

پرون غم کښں سوختہ شوے نن بہ لاغ تہ ځم

د زمانے تشنہ لبان بہ ترلبان کړی منان

پرون لہ وصلہ نہ سراب نن بہ سراغ تہ ځم

فخر کونکے پہ خطاب د غلامئ دہ غلام

پرون پہ نور سرہ نوری نن بہ چراغ تہ ځم

*************

---

حق د یاد دے په یاداش نه اداکیګي
نا تمام نه کار تمام نه تمامیګي

ذاکران اؤ شاکران د کل امکان
ستا خدمت کښ یو حبه نه حسابیګي

د جلال اؤ د جمال کمال په حق کښ
فکر خیال د عقل مندو نه چلیګي

بے کسی اؤ عاجزی عذر ګناه
ما سوی له د نه بل څه نه قبلیګي

اجتناب له نواهے اتیان په امر
اعتراف د عاجزئ ده که پوهیګي

که سجده ده که قیام ده که رکوع
عاجزی ده له عاجزو صادریګي

که صیام طواف زکات کلمه توحید ده
بندګی ده دبنده چه اداکیګي

د بنده بندګی ستا په حول قوت ده
بے توفیقه دا ناتوان کله توانیګي

بے له فضله به جاهل ظالم هالع
څه خیر راوړی چه له بدو نه صبریګي

دا ناقصہ غلامی د خوار غلام

هیڅ شے نہ دہ ستا کرم باندے نازیګي

***************

---

ځما سینہ کښې ځما یارہ نشیمن نہ لرے

ځما شیشہ کښې ځما یارہ نماین نہ لرے

ستا مرایہ یمہ ځہ ستامظھرہ یمہ ځہ

ځما پہ زړہ کښې ځما یارہ تہ مسکن نہ لرے

فکر د خیال ځما شوی قال د حال ځما

ځما پہ خولہ کښې یارہ تہ در د ګفتن نہ لرے

ځما د زړہ ترابا ګل کہ د نوری ګلابہ

ځما د زړہ فیضانہ تہ ناف ختن نہ لرے

شځولہ مستئ نہ رقصان د غلامئ لونیان

ځما د زړہ دالانہ تہ چرخ دامن نہ لرے

جشن تو حید لرم صحن تجرید لرم

ګړنګ ملا د ماورا سازوسوزان نہ لرے

***************

---

شګوفہ دہ شګفتہ ځما د زړہ

حوالی شو ګل ګشتہ ځما د زړہ

سحری باد ربیع کوی پرواز
عندلیب شہ فریفتہ حُما د زړه

برگ گل د شبنم سره دے ړک
یو قطره کړه چشیده حُما د زړه

رائیحہ مے د رئیحان کړه پہ دماغ
نا شکیب شہ مزیده حُما د زړه

کہ سقا شی د ساقی صافی رحیق
شی حاصل بہ جمیعہ حُما د زړه

کہ هارون د زمانے وکہ رحلت
جاویده ده زبیده حُما دزړه

دملوک اوډ بدرئ دوران شہ ختم
اوس بدرئ ده آینہ حُما د زړه

د بھرام دگل اندامے ایام ختم
گلفامی د نامیده حُما د زړه

د مجنون لیلی جنون لکہ میراث
فکر سوز ده قرینہ حُما د زړه

بازیغہ شوه بلیغہ حضرت د حق تہ
پہ رفتار ده بازیغہ حُما د زړه

نادیده چہ فریفتہ شوہ زلیخا
یوسفی دیارنامہ ځما د زړه
ستا د اسم یوسفی نہ فداکیګي
زلیخا دہ زالخیدہ ځما د زړه
التیام ئے پہ مرهم د نا سوت شی
لاهوتی دہ ترقیدہ ځما د زړه
د غلام د غلامئ سبیلہ څہ دہ
یو نعمہ دہ دیرینہ ځما د زړه

*************

---

تاب د زړه بے تابہ کړم لہ تابہ نہ
خیال د څہ بےخوابہ کړم لہ خوابہ نہ
ستا لہ شان شوکت نہ پہ هیبت اندرون شہ ځما
غم د څہ بے نابہ کړم لہ نابہ نہ
یا رحیمہ خدایا د رحمت د امیدوار یم
خوف د څہ بے آبہ کړم لہ آبہ نہ
وکړه پہ خدمت د غلامئ غلام غریب دہ
ستا هجران نیران خو څہ کباب کړم لہ کبابہ نہ

*************

---

آرزو د آرزومندو یو اخبار ده
صفا زړه لکه وارلس په خوش ګفتار ده

له هر شش طرف نه اخلی اعلانونه
رموزاتو د امکان لره اظهار ده

تاؤ تاب په کښې له عشق پیداکیګي
برقیت په کښې له فکر نه تابدار ده

تصورستا د جمال لمبه د اور ده
د عاشق زړه ئ نیسلے په انګار ده

غلامی به منظوریګي په علاج کښې
خدائ د روغ کړی د عاشق زړګے بیمار ده

**************

---

چرته ګل اؤ چرته خار چرته یار چرته اغیار
چرته باغ اؤ چرته زاغ چرته تار اؤ چرته مار
چرته ناس چرته خناس چرته نور اؤ چرته نار
چرته عیش اؤ چرته عشق چرته روغ چرته بیمار
چرته شرک چرته توحید چرته بت چرته غفار
اسلام ټوقے لوپے نه دی د سنت شه تا بعدار
په رواج نه موندے کیګي د توحید شرین اثمار
نفع نه کوی بدعت لکه زنګ شی تیغ آبدار

نجاست د طهارت ده د بدعت هر يو .روزګار

غلامي شي طغياني د بدعت په دار مدار

خدايا و ساتے غلام ته غفار ئے ته ستار

****************

---

سر د يار چه د اغيار سره شي فاش

په يارئ كښ يار له يار شي دل خراش

حلاوت ددلبرئ تر ميان پاسي

د هجران په تلخئ تريخ شي كل معاش

نام نشان ددلبرئ نيست و نابود شي

نه ئے نقش په زړه ګرځی نه نقاش

په خاطر د پاك سرور ځما سبحان

نيک انجام كړه د غلام د زړه تلاش

**************

---

چه د زلفو په زنجير نوی محبوس

په مذهب د عا شقانو ده مجوس

بے له ياره چه له بل څه اميدواروی

په مذهب د مخلصانو دے مايوس

چه له نفس دبل چا بد خواهي غواړی

په مذهب د جوانمردانو دے ديوس

چہ دعشق پہ دولت نوی سعادت مند
پہ مذهب د نیک بختانو دے منحوس

چہ د عشق پہ گریوان نوی سر نشیب
پہ مذهب د دلبرانو دے خنوس

چہ طالب د ننگ و نام د عقبا نوی
حاصل مہ شہ د دنیا ننگ و نامو س

چہ صندوق د بدن لعل و جوهر نوی
ظاهرجیب دخدائ ہک نکہی پہ فلوس

چہ باطن کښں ئے مهران گوهران نوی
پہ مذهب د جوهریانو دے افلوس

چہ د یار پہ یاد ئے زہرہ خوش بویہ نوی
زہگے نہ دہ خو ہیران دے یا کنوس

چہ د یار پہ سودا نوي سرفراز خوک
پہ کوهی د شقاوت کښں دے منکوس

چہ د یار پہ یاد وی شاد د چا درون
هغہ تل وی د خپل یار سرہ جلوس

سر د زہرہ چہ تار د زلفو سرہ بند شی
مرایہ شی مخ د یار پہ کښں معکوس

سید پوری آب حیوان شربت کہ نوش
چہ زندہ شی صد سالہ مردہ نفوس

خو پرهیز د شبریعت ورسره بویہ
چہ علیل شے صبا پہ بو لیموس

پہ معجون د شریعت واخلہ قدم
چہ قوی شی د ایمان صالح کیموس

پہ ممبر د شریعت کیږده قدم سم
پہ هر بام مہ وایہ بانگ لکہ خبروس

خدایا تیل د شریعت څما روزی کړے
چہ مړنشی د غلام د زړه پا نوس

***************

---

الله الله دا الف الفت لری
الله الله لام تعریفت لری

الله الله ہیر لذت شرین لری
لام ثانی لار څمونگ د دین لری

الله الله ها هدایت داره ده
لارے دوحدت نہ خبر داره ده

الله الله دا عزت نصرت گنړم
الله الله ہیر زینت قربت گنړم

الله الله تاج د سردارئ خُما

الله الله ړاج د راجدارئ خُما

الله الله موم د زړه سنګین خُما

الله الله رنګ د زړه رنګین خُما

الله الله تہ ئے مرغوبہ خُما

الله الله تہ ئے مطلوبہ خُما

الله الله حاکم اؤ فرمان خُما

الله الله عفوه د عصیان خُما

الله الله دے خُما د زړه حیات

الله الله دے خُما کلی نجات

دا خُما د زړه حجاب کړه برطرف

دا خُما د زړه غوټئ کړه منکشف

دا خُما د زړه بو ټی بادار کہ

دا خُما د زړه ګلاب ګلدار کہ

دا خُما ذکری چمن تازه لره

دا خُما فکری خیال فازه لره

الله الله باطن اؤ ظاهر خُما

الله الله اول و آخر خُما

الله الله دے غرض مقصود. ځما
الله الله دے طلب بهبود ځما

الله الله دے خاوند د زاز ځما
الله. الله دے غریب نواز ځما

الله الله ته قوي قدرت لرے
الله الله ته جلی قوت لرے

الله. الله ته عزت کامل لرے
حرمت اؤ رحمت کرم شامل لرے

الله الله ته علم بصر لرے
هم په حال تباه ځما خبر لرے

الله الله خدایا ذالجلال ئے ته
الله الله خدایا ذالکمال ئے ته

الله الله خدایا ذالانعام ئے ته
الله الله ذالاکرام ئے ته

الله الله ته ئے رحمان الرحیم
الله الله ته ئے ستار علیم

تاب د توفیق غواړم. له دلباره ستا
عشق کامل غواړمه دلداره ستا

راکړه محبت مشاهدت سره
اوچت مے حقیقت کړه د قربت سره

رضا یم په قضا له ما راضی شه ته
مریض یم اندرون ځما شافی شه ته

لار د وحدت ښایه سر گردان یمه
دام د غیرالله کښ بندیوان یمه

لار د معرفت لټا نه غواړمه
کار د شناخت پسے تل جاړمه

لار د مقصود ښا یه په رحمت سره
دام د ځائ دقربت راکړه په شفقت سره

الله الله ډیر ثمر شرین لرے
الله الله خوند د آنگبین لرے

دا د سید پوری ولی ارشاد دے
دا د سید پوری سخی امداد دے

دا د سید پوری قاضی قضا ده تل
دا د سید پوری مفتی فتوی ده تل

دا د سید پوری د زړه انشا ده
دا ز کری انشا د رب منشا ده

دا د سید پوری حکیم فرمان دے
دا د سید پوری فصیح بیان دے

نقش مے پہ خیالی قلم پہ زړه لره
الله الله دا نقش پہ زړه لره

دا د سید پوری مکتب کتاب دے
هریو حرف ئے لیک پہ میوناب دے

دا د سید پوری د زړه چراغ دے
ځکہ تر روښانہ باغ وراغ دے

دا د سید پوری د باغ بلبل دے
ځکہ چغنده پہ هر محفل دے

دا د سید پوری د بنړ طوطی دے
دا د سید پوری دبام قمری دے

ځکہ د فیضان چوری شکرے خوری
باغ د هر منزل کښ سیب نارے خوری

دا قمری هو هو پہ چبو ترو کوی
کلہ کړی پرواز سیل د بنګلو کوی

دا د سید پوری د خم شراب دی
سرے پیالے د زړونو پہ لب لاب دی

دا د سید پوری مشک مختوم دی
رنګ په رنګ الوان په کبش مرقوم دی

دا د سید پوری د باغ کوکنار دے
هوش ربانیده د هر بیدار دے

دا هغه احسان یزدانی دے
دا هغه انعام رحمانی دے

دا پاک حضرت د سینے نور دے
داغی مسلسل وار د سید پور دے

یعنی دا فانی نقوش دنیوی
پریږده تاپابی نقوش لدنوی

الله الله نقش کن بر لوح دل
دور کن از قلب نقش هر دغل

ګام دل یک بر ثری دیګر بعرش
بلکه بالا تر نهد از فرش عرش

یا کریما از طفیل مصطفی
رحم کن بر این غلام بے نوا

## انوار توحید

غلام څه نوے غلامی نوے مولا نه لری
مولا قدیم قدرت خدمت جدا نه لری

امکانیت د هرممکن علم قدرت کښ وینم
که په صورت کښ دےجدامعنیجدانه لری

دار ومدار دهرقوت په هرصفت پورے ده
بے له صفت نه ده ممکن قوت قوا نه لری

هر یوفانی به شی فانی دخدوثت له رویه
بے له واجب نه ماورا بوئ دبقا نه لری

ددنیا ننگ وناموس به شی مایوس له مرګه
رسم ورواج د بدعتی عزت صبا نه لری

استغفار آخردکار به وی ستا کار غلامه
بے له هادی له هدایت نه خوک هدا نه لری

****************

---

څما دلداره دلداری د خپل دلبر نه لرے
باطن بیداره بیداری د خپل هنر نه لرے

نن له قرآن نه مخالف روان په رسم رواج
معلومه دا چه رسالت دپاک سرورنه لرے

د خدائ رسول نه مخالف تل به خائف وی
ولے مغرورہ د مولا پہ دا گذر نه لرے
توبے ته نن صبا نیته گناه فی الحال کوے ته
حیات مرهونه له ممات خالی دفتر نه لرے
لیل و نهار شمس وقمر دوران تبدیل کوی
نه اخلے عبرت څکه تمیزدخیراؤشرنه لرے
مولا د خپلے مولائے له برکته غلام
په کرم عفه که نقصان دخپل کشورنه لرے
************

---

غالبه خدائ کړه غالب له فضله نور څما
په خپل دیدار لره آبدار د سترگو تور څما
څما باطن کړه مجلا په تجلی د وحدت
له خپله فضله کړه بینا چشم شبکور څما
نورانیت مے غلبه کړه په ظلمت نفسانی
ظاهر باطن کړه سراسر عرفانی نور څما
ستاپه باطن کښں دم تابی شته دل تابی نه لرے
له بے تابے دے دباطن چراغ دیجور څما
مسلمه نوم د مسلمان شرم حیا نه لرے
د مسلمان له بے با کے دے عار پیغور څما

د غلامی پہ نیک نامے مولا نیک نام کہ مونږه

ستا دجمال انواربہ صاف کړی ضمیرتور ځما

**************

---

یو نغمہ ده توحید مظهر تار د کثرت

نورے نغمے موحده شوے تیارے ستا د پاره

د خدائ حصہ امانت ستا سره توحید محبت

نورے حصے د جهان ټولے پیدا ستا د پاره

برګ وباران نان و خلوا لہ فرش هم تر عرشہ

د جمیعا پہ خطاب شوے مملوکے ستا د پاره

کہ اهتمام شی د غلام نوا پہ سوزدتوحید

د شمس الدین سیدپوری پیردعاده ستادپاره

**************

---

ځہ چہ هر طرف تہ ګورم مخ د یاردے

پریشان پرے تار پہ تار دزلفو تار دے

پہ هر کانړی پہ هر ګل پہ هرے پانړے

پہ جلّی قلم تحریر بیان د یار دے

عاشقان لکہ مرغان سحری خیز

هر آواز ئے د دلبر ذکرازکار دے

چہ تکرار نامہ دیار لیل ونهار شی
د هغو نصیب د شاه ښکلے دیدار دے
لہ اغیاره چہ عبرت د یار وانہ خلی
غلام کلہ غلامانو کښں پہ شمار دے

**************

خو پہ اول کښں د اول جلوه جمال نشی
پہ آخرت بہ دآخر توحید کمال نشی
بویہ اول چہ پہ توحید سره روشن کښں درون
پہ آخرت بہ د آخر توحید سنبهال نشی
دا خو دنیا ده چہ کیمیا ده د توحید لپاره
پہ آخرت کښں بہ توحید د چا تنال نشی

*******************

بے پروا کہم خدائ لہ حور | چرتہ حور چرتہ حضور
بے پروا شومہ لہ گوره | چرتہ گور اؤ چرتہ نور
پہ قبضہ ځما کښں نہ دے | کہ صبر کہ وی شور
کہ ځما صفت گناه ده | تہ صفت لرے غفور
کہ خطا غلطی لہ ما ده | د پوره صاحب د نور
تہ الست کښں صادق ئے | ځہ بلی کښں یمہ چوړ
کہ د حشر ندا وشی | ځہ بہ پورتہ کمہ شور

د گناه په صله راکړه د غفران حصه غفور
که گناه لرمه ډیر ځه ته رحمت لرے وفور
که د عشق استاذان ډیردی ځه غلام یم دمنصور
ته د مصر نظر و کړه ځه غلام یم د سید پور
**************

د ماوراؤ خو مظهر ده د توحید له پاره
بے له توحیده ماسوی به دچا خیال نشی
چه دل بسته شی پابسته د ماسوا په زنجیر
په آخرت کښ به حسرت یعنی وبال نشی
چه اندرون کښ تصور د خپل دلبر نه لری
په آخرت کښ مسرت د چاپه حال نشی
په آخرت کښ به هیبت وی سیاست د جلیل
خدایا مایوس د خوار غلام ستا له جمال نشی
****************

له ماورا نه د یارئ طمع داری مکوه
له ماسوی نه د وفا انتظاری مکوه
قوی درکړده قوت عزیز ئے شان د عزت
له ناتوان نه د توانئ امیدواری مکوه

د عبادت حقيقت دے خاتميت په وحدت

له مشرکانو د ايمان باورداری مکوه

هله به درشی په لاس ختم چه ستا شی انفاس

د هر عمل له بدليت نه انکاری مکوه

رفتار کوه په قرآن دهان لره دمنان

د بدعتيانو په بدعت عمل داری مکوه

رسم ورواج دجهان دے خسارت د ايمان

د خاسراتو په خسرت زيان کاری مکوه

****************

---

عار پيغور د عاشقئ نه لری عار

مدعی وی په دعوه کښ گرفتار

د ساده ؤ ساده گی ساده زينت دے

بے پروا وی د يارئ نه د اغيار

هغه رنگ چه رسول کسوت په رنگ وی

په هغے لری درون بيرون رنگ دار

چه له شرک بدعت رواج ريا رها شی

نا ميده شی مسلمان په نيکو کار

غلامی دے خدائ منظوره د غلام کړی

په جنت دوزخ عشرت نه لری کار

هوا سیگمہ دیدار تہ　　حیرانیگم ستا سنگار تہ

چہ سودا پہ کبش نسیا وی　　نہ ځم ځہ هغہ بازار تہ

چہ مطلب مے دے لہ تا نہ　　نہ جہریگمہ اغیار تہ

تہ ما مہ غلوه پہ حور　　عقل مہ خایہ هوشیار تہ

زاهدان دے پہ سجده کړه　　د جنت باغ و بهار تہ

عا شقان د پہ میلان کړه　　د توحید گل گلزار تہ

حیرا نیگی ذاکران هم　　ستا د نوم شرین تکرار تہ

پہ آمان شو مجذوبان　　هیخ حاجت نہ لری شمارتہ

کہ جنت دے کہ دوزخ　　یو صلہ ده ستا دلبار تہ

د ترهیب ترغیب ندا هم　　خود صدا ده خپل گفتارتہ

عشق لویہ سبیلہ ده　　کہ منظوره شی نگار تہ

چہ رضا شی یار لہ یاره　　ځہ حاجت وی بیا روئے بارتہ

چہ د فکر لاس دراز وی　　خالی نہ وی بہ روزگارتہ

ځہ غلام دسید پوری یم　　ځہ حاجت بل خدمت گارتہ

*******************

---

ما حیات دنیوی الا متاع فخر وی

غیرخدا شد کجروی تو بوا الا الله الهدی

اے غیره ایام چند آخر شوی در گور بند

خود راه ها کن زین کمند توبوا الاالله الهدی

ټول ایجاد د ایراد دے اکرم دے ځما
دا غم داستم خپل صنم دے ځما

پیران عارفان زاهدان عاشقان
عابدان کاملان عالمان عاملان

درد مند په دا حال هر مسلم دے ځما
دا غم داستم خپل صنم دے ځما

قدم د آدم په قلبی لطیفه دے
د نوح ابراهیم په سری لطیفه دے

په روحی د موسی قدم دے ځما
دا غم داستم خپل صنم دے ځما

قدم د عیسی په خفی لطیفه دے
دا نا په دے راز هر ذاکر ظریفه دے

په اخفی ده سرور قدم دے ځما
دا غم داستم خپل صنم دے ځما

چه خدائ کړی څوک پوه هغه پرے پوهیګی
نادان د غلام په وینا نه پوهیګی

بیان بے پایان طاقت کم دے ځما
دا غم داستم خپل صنم دے ځما

****************

په نامه د غلامئ باندے غلام یم
په هنګام د مزدورئ کښ ناتمام یم
ناتمام خو ناتمام . وی شا مدام
نامیده په بدنا مئ سره بدنام یم
هیڅ بدنام په نیک نام نشی په نیکئ
له ازل نه جهالت سره بدنام یم
ځما خپل جهل په ما ظلمونه کړی دی
ځه له خپلے بدرنګئ ځنے بدنام یم
له ناکامه نه ما کام اغستئ نه دے
ځه له خپلے خودرا یئ ځنے بدکام یم
په صله دمغفرت به نجات غواړم
چه ناقصه غلامئ کښ ځه غلام یم
*******************

---

رضا وسپاره قضا ته کینه فارغا مسرورا
میلان مکړه نفس هوا ته کینه شاکر مشکورا
له دنیا ګوشه کنار شه له اختیاره بے اختیار شه
ثنا خوان د رب غفار شه کینه فارغا مفروغا
یا دوه د الله نام کړه درون ذکر دوام
شب و روز عمر تمام کینه سا ریا مسرورا

شریعت طریقت دواړه — دی لازم ملزوم هم غاړه
قدم مرده په ویجاړه — کینه شارعا مشروعا
اول کار د شریعت دے — چه محکم پرے طریقت ده
د کامل مطابعت دے — کینه تابعا متبوعا
په ایمان به تل خائف وی — چه له شرع مخالف وی
استدراج وی که کاشف وی — یعنی لاعنا ملعونا
چه انکار د شریعت کړی — لوئ زندیق دے زندیقت کړی
که هر څومره کرامت کړی — خودے جاهلا مجهولا
عظیم دوه کرامتو نه — هر مومن لره وی اخونه
یو ایمان بل عملونه — کوه لازما ملزومه
د محبوب مشاهدت دے — کینه شاهدا مشهودا
له علمه ځان جدا کړه — په وحدت کښې ځان فنا کړه
له فنا وصول بقا کړه — کینه ذاکر مذ کورا
عبد یت خواری زاری ده — دخپل ځان انکساری ده
مسکنی افتقادی ده — مشه فا خرا مفخورا
له مماته نه خبر شه — له حیاته لاس په سر شه
د ندم خاورے په سر شه — وکړه توبتا نصوحا
خفی ذکر کړه د ذات — دے شامل د کل صفات
په کښې ډیر دی ثمرات — لیکن ساترا مستورا
چه شی نوے فیض ولوج — کړه په خیال دحال عروج
که آسمان وته خروج — کینه فارحا مفروحا

د سیدپوری ولی پہ لور ځہ    ناراستی مکړه فی الفورځہ

پہ اخلاصہ پہ ډیر غور ځہ    شے بہ ناصرا منصورا

اس دخیال چہ زین لگام شی    پہ فکرونو سره رام شی

هر منزل بہ زیر گام شی    کینہ واصلا مو صولا

د غلام رب الا ربابہ    ما رها کړه لہ عذابہ

پہ محشر مکړه عتابہ    یا عا فیا غفورا

سید پوری خنجرپہ لاس یم    سر وهونکے د خناس یم

امیدوار د رب الناس یم    ځکہ فاتحا مفتو حا

****************

---

مسافرئ کښې ځما روح دے مسافر دے نشی

مجاورئ کښې د دنیا دے مجاور دے نشی

دغہ سفر دمسافر بہ رو رو شی ختم

پہ خپل وطن کښې روح ځما دے مسافردے نشی

دغہ وطن دے شها دت شہ مبارک شهیده

پہ شهادت کښې روح ځما دے مسافردے نشی

معائنت کښې سکونت د حضورئ لرمہ

معا ئنہ کښې روح ځما دے مسافر دے نشی

لکہ غلام څوکیداری د خپل مولا کومہ

پہ بندگئ کښې روح ځما دے مسافر دے نشی

د مسلمان مسلمانئ کښې ځہ نقصان نہ وینم

د بدعتی پہ حق دعا ده چہ کا فر دے نشی

****************

---

پہ سورلعل دہ د یاقوتو نوم د یار
پہ فضو قلم د ے خیال کہ نقش دار

مسافر دعاشقئ لرہ ئے ورکڑہ
ځہ پہ د معلومہ وم د عشق لار

کہ د یار دکور اؤ کلی نشان غواړے
لدے نوم بہ شی معلوم دیار دیار

پہ غلاف کښ دسینے صندوق دتن کښ
ھغہ نوم لرہ پہ خیال سرہ حصار

چہ دے سپین جمال دیارپہ زړہ راګرځی
ھغہ نوم تہ کړہ لہ عشق انتظار

تل لہ اسم مسمی رامعلو میګی
بے لہ اسم مسمی نہ شی اظھار

چہ فنا پہ عشق د یارشی لہ اغیارو
فقط پاتے شی باقی دیار دیدار

پہ دیدار دمعشوقے کلہ مړیګی
وګے سترګے دعاشق لیل و نھار

پہ دیدار سرہ چہ ګرم اور دعشق شی
پہ کښ سوزی دصحرا پتنګان خوار

چہ غوټئ شی ددلبرو شنہ خالونہ
د عاشق چشمان ګل شی د بھار

لکہ ګل غوندے پہ غټو ګورے
چہ بہ کلہ ګل شی ھغہ غنچہ زار

گل د سترگو گل دخیال چہ مقابل شی
معشوقہ عاشق خبر کړی پہ اسرار
چہ دراز خبرے کړی ورتہ برازے
عاشق هلہ شی لہ عشقہ خبردار
لہ ویصالہ پہ طلب کښں ډیر ارام دے
چہ پہ غم د هجران نہ وی خبردار
پہ ویصال کښں کلہ فصل کلہ وصل
کلہ قبض کلہ بسط وی دوسار
گاہ غضب وی کلہ عزل کلہ فضل
کلہ رحم شی د پاك رب الغفار
زندگی د عاشقانو خون خواری دہ
عاشقان وی پہ بلا تل گرفتار
خدایا سترگے د غلام کړہ نظر بازے
بیا نما کړے د دلبر ښکلے نگار
*****************

---

پہ نور ددین سرہ دہ زړہ دلجور انور دے څما
لہ ظلمیت الامان آمین اکبر دے څما
لکہ بندی خروج ولوج کښں خپل اختیار نہ لرم
دہ خاتمے لہ دستہ خوف دہ زړہ پہ سر دے څما

په رياضت په عبادت ويصال موندلے نه شى
ځکه په لاس کښ دلاتقنطو خنجر دے ځما

ظلوم جهول خطاب ځما رحيم غفور ستا بيان
ځکه تکرار دګناهونو لوئ اختر دے ځما

تا چه خطاب دوبتغوا کړ ماباور کړے دے
په هر مشکل کښ وصيله خيرالبشر دے ځما

چه دحضرت متابعت لره بيعت دے سنت
ځکه قربان له نقشبندو مال و سر دے ځما

مظفرآباد ئے علاقه وطن کشمير دے منير
مقام سيدپور په شريعت پير برابر دے ځما

د کم تکليف وم طلبى بالانشين ثمرين
فضل دخدائ وو شمس الدين ولى رهبردے ځما

تورے سينے صفاکول په نظر ګران امر دے
تا ثيرله خدايا پيرصاحب شمس وقمردے ځما

خدائ تاثيرپه واسطه دولى بل ته درومى
دا عقيده ده سنيه الله خبر دے ځما

مکر حيلے عجب ريا دى مهلکات دسلوک
هم اشاعت کښ شته ګودړى سمعت لنګردے ځما

اسم ذات قطب حسنات ئے دائرہ دی همہ
سلطانی اسم الله الله شهد و شکر دے څما

الله الله چہ کړی څوک نقش دزړګی پہ تختئ
پہ انجمن کښں خلوتی دغہ افسر دے څما

خاورے د خپو د نقشبندو دین ایمان دے ملا
کہ پہ مذهب ستا ناروا وی خوباور دے څما

څوک چہ زمری دنقشبندو تہ ضرر رسوی
پہ تباهی دهغو سوال درب پہ در دے څما

دوئ مستیز دهغہ نور دی چہ شپہ دمعراج
راوصول کړی لہ مولا نبی سرور دے څما

چہ لہ فقیرہ فقیری لہ شاہ شا هی رکوی
هغہ جذبہ دولایت چہ پیر انور دے څما

کہ محبوبہ سیدپوری بیا کجل کړی سترګے نرئ
چہ کرشمہ کړی ددارینو لاس پہ سر دے څما

اے دګړنګو ملا لاس دپیر پہ لاس کښں ورکړہ
د شاہ سید پور غلامی عین تاج افسر دے څما

***************

---

چہ د نفس پہ لارے مړ شی لعنتی دے
چہ دروح پہ لارے مړشی رحمتی دے

کاردنفس واړه خلاف دشریعت دے
مخالف لہ شریعت نہ بدعتی دے

کاردروح واړه رضا دکبریا ده
هر یو دم هریو قدم ئے سنتی دے

سفلوی دنفس مدام سفلی خرام
علوی شان دروح علوتہ علوتی دے

مشرف دے پہ شرف عقل دروح
نفس جاهل دے هریو فعل ئے جهلتی دے

وزارت دنفس کوی شیطان خبیث
ښائستہ کونکے داعمالو علتی دے

وزارت دروح کوی عقل . سلیم
پہ هر گام پہ هر کلام کښ صحتی دے

دوه شاهان کړی پہ اقلیم دقلب دوه حکمہ
خیراؤشر چہ یو لہ بل نہ ضدتی دے

نفس اؤروح پہ تخت دقلب کوی خون ریز
پہ فتحت کښ هر قوی خود فتحتی دے

موهوبی امداد چہ راشی لہ وهابہ
مل د روح شی روح لہ فضل نصرتی دے

مقهوری امداد چہ راشی لہ قهاره
یاردنفس شی نفس لہ قهره قوتی دے
نفس کافر روح مسلمان تن رعایت دے
رعایت تا بع د شاه غلبتی دے
ځہ آماند خپل ایمان پہ منان غواړم
سیدی سیدپوری پیر مے صلتی دے
ځہ غلام دغلامانو ربانی یم
ربانی غلام د هرچا خدمتی دے

*****************

---

شان د روح سره نہ ښائ خبیثات
شان د نفس سره نہ ښائ طیبات
روح لہ امره امر پاك دے لہ هر کیفہ
هیڅ دروح پشان کښ نشتہ کیفیات
نفس لہ قهره نہ پیدا سجنی اصلی
لہ هر کیفہ پہ کښ شتہ دی کیفیات
سالکان چہ حقیقت انسانی گوری
پہ قوت د فراست کړی ادراکات
دا تعبیر لہ روح امره نہ کیدے شی
نورانی لری صفات ډیر کمالات

چہ تابع شی نفس دروح خود نورانی شی
پہ طرف د لامکان کړی عروجات
کہ تابع شی روح د نفس خود ظلمانی شی
پہ طرف د سجین کاندی هبو طات
پہ شیشہ د روح کښ عکس د نفس ښکاری
چہ لہ فضل دچا صاف شی احوالات
حق بینان بہ پہ بیان ځما پوهیګی
نہ پوهیګی خود بینان کور باصرات
پہ طفیل د شمس الدین فقیر اے خدایا
نمکین کړے دغلام رنګین ابیات

*****************

---

پہ صیقل سره چہ پرے شی د زړه زنګ
خود پہ رنګ د الا هی شی سړے رنګ
ناسوتی میدان نہ تیر شاه ,سواردروح شی
پہ میدان د ملکوت کوی غورزنګ
چراګاه دملکوت چہ چرنده شی
چمن ګاه دجبروت تہ کړی آهنګ
دلاهوت پہ حرم ګاه کښ پہ ارام وی
د قربت آب و دانا خوری بے قلنګ

قوی رنګ د شریعت دطریقت ده
رنګین رنګ اطاعت ده دخدائ رنګ
سیدپوری تعلیم آموخته ځی مولایا
هلاک نه کړے په نفس ظالم پلنګ
په خاطر د پاك حبیب رب الکریمه
په خپل رنګ کړه دغلام خاتمه رنګ
نور ددین دهدایت په بروج شی ګرم
پرے تودیګی خواروزار ملا ګړنګ

******************

---

چه قلبی کعبه صفاشی له بتانو
وصل هله شی وصول د عاشقانو
چه درون بیرون دعشق په رنګ شی رنګ
عشق هله شی مقبول د عاشقانو
بے له یاره هر چه ځائ په زړه کښ نسی
هغه واړه دی بتان د کافرانو
هاجسه خطره ګرځی وسوسه خود
عزم نه وی ماسوی الله د عاشقانو
چه کړی عزم مستحکم سوی له یاره
عاشق نه دے په مذهب د عاشقانو

چہ عاشق سوی لہ یارہ کړی مقصود
صادق نہ دے پہ مذهب د صادقانو

غلبہ چہ اندرون حب د اغیارشی
مخلص نہ دے پہ مذهب د مخلصانو

چہ وصول مشاهدہ معائنہ کړی
کامل هلہ شی پہ نزد د کاملانو

چہ دوام شی پہ حضور سرہ منظور
مرشد هلہ شی پہ نزد د مرشدانو

چہ محکم پہ شریعت پہ طریقت شی
سالک هلہ شی پہ نزد د سالکانو

چہ لہ علمہ معرفت د خدائ معلوم کړی
عالم هلہ شی پہ نزد د عالمانو

چہ تسلیم کړی عبدیت ربوبیت
عابد هلہ شی پہ نزد د عابدانو

چہ لہ نفس کړی خلاف ریاضت واخلی
زاهد هلہ شی پہ نزد د زاهدانو

چہ ذاکر ذکر فنا باقی مذکور شی
ذاکر هلہ شی پہ نزد د ذاکرانو

چہ پہ غاړه سید پوری طوق د ارشاد کړی
غلام هلہ شی پہ نزد د غلامانو
********************

خدائ راخکلے پہ کرم سره قلم دے
مشرف پہ عالم نسل د آدم دے
ما سوی لہ خدایا هر څہ چہ یا دیګی
حکمران پہ هر اشیاؑ ابن آدم دے
بے پایانہ مهربانہ پاك سبحانہ
پہ زمری د آدم ستا فضل و کرم دے
لہ انسان نہ مطلب ستا استقامت دے
مستقیم پہ شریعت ستا مکرم دے
شرف نشتہ بے لہ شرع دانسان
غلام غواړی هدایت لوئ دکرم دے
**********************

چہ دخدائ فضل وکرم شی سائبان
پہ سایہ باندے روان شی راه روان
هیڅ اثر پرے تموزت د افتاب نکړی
لہ طبعی باران هم شی پہ آمان

لہ گلئ باد و باران نہ پہ آمان وی
پہ نقصان د ناقص نہ مومی نقصان

بے غمی شکم پوری غفلت انگیز دے
ځکہ وگی غمجن گرځی عاشقان

د عاشق طبعی خوراک قوت لایموت وی
روحی قوت ئے تصور وی دجانان

تصور ذاتی د یار طاقت افزا دے
د شهود شربت عاشق کړی پهلوان

چہ مدام د مئ فروش پہ دوکان ناست وی
پہ مستئ سره بہ مست وی هر زمان

چہ ئے خال وخط د یار پہ زړه رقم شی
هغہ تل وی مخ د یار تہ ناظران

بے لہ یاره د اغیار تعلقہ شرک دے
بے لہ عشقہ ټول عالم دی مشرکان

عاشقی اؤ دلبری دین و ایمان دے
خدائ د نکړی خوک بے دین و بے ایمان

خلیلی تدبیر کوه سید پوری پیره
چہ سنگ سار شی د غلام دزړه بتان

ایها المنکر سلم عرفان سید پوری
کره شریعت طریقت امتحان سید پوری

لولا یوافق رشدانہ مع القرآن
پریږده په ځائے د اخله په خولے بیان سید پوری

لو کان یوافق رشدانہ مع القرآن
کحل بصر که غبار قدمان سید پوری

انہ هاد الی اللہ بذکر خفی
نقشبندی دے سرهندی عنوان سید پوری

انہ منحرف من عملیا ت جمعا
په اسم ذات دے مداما جریان سید پوری

ایهاالعالم غررت بعلم و رواج
راشہ عالم شہ په قلبی لمعان سید پوری

مذهبہ واتیانہ علی قدم رسول
الله الله وه خاتمہ ختمان سید پوری

اسئل الله لتوفیق عشق لم یزلی
غلام نیسل ده په منګل دامان سید پوری

*********************

---

دوه طرفہ دے ځما خیال نرد بیان
یو طرف په لامکا ن بل په مکان

پایہ پایہ پہ قدم دفکر خیجم

پہ کرم بہ ذالکرم تہ شم رسان

عاجزی فقر زاری بہ ئے تحفہ کرم

لہ رحمت نہ امیدوار لہ خوف لرزان

محبت ئے نا تا مہ دعوه دعشق

گواهان لرم عفوه بل غفران

کہ ئے رد کړه دا دعوه ځما ناقصہ

سفارش بہ کړی ځما ختم نبیان

پس لہ فکره مناسب چہ دا ترتیب

گوش دهوش کړی سید پوری نقشبندان

لہ سیدپوره تر صدیق اکبره پورے

وصیلہ دی د غلام جملہ پیران

پہ غلام پرده د ستر کړه ستاره

شرمنده نشی د حشر پہ میدان

*******************

---

دا ځما ظاهری خیال ظاهر بیان

صبا سودبہ د باطن شی اؤ کہ ذیان

آینده کښی حیرانی کہ پریشانی ده

خبر نہ یم چہ بہ سود شم اؤ کہ ذیان

مغفرت د ستار واسع لہ معصیتہ
لہ عمل نہ ہیر ارجی دے ستا غفران
دلا تقنطوا پایہ خُما مایہ دہ
بے لہ فضلہ سراسر لرم خسران
د خیرالانام صلہ خُما حلیہ دہ
پہ وحدت اؤ رسالت لرم بیان
د وحدت اؤ رسالت لہ برکتہ
دا غلام کرہ لہ نقصانہ پہ آمان

***************

د حساب اؤ د کتاب نہ لرم تاب
فطرتی غواہم د عشق تاؤ تاب
دا آسان منزل پہ باندے آسان احسان کرہ
رحم نبائ دهر ستہری پہ تعاب
د بے مثل بے مانندہ طلب دار یم
تہ د چند مکرہ د چون سرہ حساب
تہ قادر ئے پہ عفوت اؤ مغفرت هم
لکہ خنگہ چہ تہ ئے سریع الحساب
لہ غلامہ شہ رضا یا ذالانعام
پہ آمان ئے کرہ ایمان مکرہ عذاب

*****************

ذ کر اؤ ذاکر مذ کور چہ شی فنا
نور بہ شی بیا نور نوی لہ نور جدا
اصل چہ لہ اصلہ نہ پیوند شی
هلہ بریدہ جدائ دویئ بند شی
کلہ بشریت وی د بشر سرہ
کلہ خصوصیت د دلبر سرہ
کلہ زرہ کړی سیر پہ افلاکونو کښی
کلہ کړی جولان پہ دے ملکونو کښی
پیرہ پیرایہ ئے پہ پیرئ سرہ
یادل ربا ئے دل روبائے سرہ
پیر مہ وایہ عکس د رهبر یمہ
وائے کہ دلبر عکس دلبر یمہ
ګورے تہ ما کښی خپل عکسی خیال
من فنا فی الشیخ فقد فان الجلال

*****************

---

تہ تن آرا ئے خو د ستا ئ کوے
څرنګ بہ لہ خدایا لقا ئ کوے

نه چه په قبضه دقدرت ئے اسیر
ولے تعمیل نه کړے د امر آمیر

امر د عامر په غلامانو وی
بوج د خدمت تل په خادمانو وی

ناز د معشوقو په عاشقانو وی
ناز د عاشقانو په خویانو وي

تا نعره وهله د قالو بلی
تا له شوقه ومنل دا پنج بنا

دا ناز کرشمه د میثاقی دلبر
دا پرون قبوله کړه په خپل ټټر

دلته عبادت د میثاق حال دے
دا تسبیح تهلیل د میثاق حال دے

شوله آینه د میثاق دا دنیا
جمله طاعات صورت قالو بلی

عکس د خویانو آینه کښ وی
خیال غرض ئے خپل معاینه کښ وی

ذات چه اراسته ئے په تجلی د نور
نه لری بل چا وته هیڅ رنګ ضرور

خال و خط هغو لره په کار نه وی
د چا چه خال وخط سره څه کار نه وی

پاک به په پاکی سره ستا پاک نه شی
بے تسبیح پاک به دانا پاک نه شی

بے ستا له تکبیره هغه دے کبیر
بے ستا له اخباره هغه دے خبیر

ته چه په زار زار سره غفور کړے یاد
اثر د مغفرت به شی په تا معاد

روح که انسانی وی نه به وی جدا
عقل حواله کړه په قوی قوا

****************

---

زین شده کمیت د مرګ کوی شتاب
ځما هم قدم له شوقه په رکاب

چه د خدائ ځخه موندے رهائ نه شی
فائده نکړی د ممکن سوال و جواب

د ممکن حیات سوالی دخدائ اصلی ده
برابر په کښ نبی ولی اقطاب

هغه خلقو فائده واغسته له مرګ نه
چه شو ختم په سنت اؤ په کتاب

د غلام فائده په مرګ کښې آزادی ده
که له فضل شی مفتوح د حسن باب

****************

---

هنډری ده نفس دے ما معلومه کړے
په رضا سره دے دا حاصله کړے
د رضا هائۍ له ده کړه را بیرون
خاص په تیغ د خلافت چه شی زبون
یو څو ورځ ئے په پاله کښې کړه حصار
تر هغے چه له فساده شی بیرون
کله کله ئے ساته د نظر لاندے
هسے نه چه دوباره انډری کاندے
که ئے بیا په رضا مست کړے دا خناس
د رضا واګے دے کړے د د په لاس
دا جهان به دله روان کړی یک زمان
دین اسلام به دے غارت کړی په یو آن
که خدائۍ غواړے نفس ذلیل که په ذلت
نجات غواړے نفس غریب که په غربت
غنا غواړے نفس فقیر په فقیرئ کړه
فضل غواړے ځان مسکین په مسکینئ کړه

غلام وائ خدایا ما تر پہ آمان کړے
پہ آمان مے لہ فکرونو د شیطان کړے
****************

---

فکر خیال بارے دیگر شو رامعاد
ستا جمال مے د جمال سره شو یاد
د ایمان شجر کښې دوه شعبے کمال دے
خوف رجاء اقرار تصدیق اصلی بنیاد
دوامی حضور سرور پہ جمال بویہ
عاشق هلہ رسیده شی تر مراد
لہ جلالہ ترسنده وسہ مدام
منازل د دلبرئ تہ دے میعاد
***************

---

دهغو د خپو غبار ځما ابصار دے
چہ وړی اؤ راوړی سلام ځما دیار
د هغو دکوڅے خاورے لعل جوهر دی
چہ پہ شوق یادوی نام ځما دیار
دهغو وینا ځما دین وایمان دے
چہ مکان لری پہ بام ځما دیار

دهغو وئیلا ځما دین وایمان دے
چہ مقام لری قیام ځما دیار

د هغو قدم دے پاس ځما پہ سر وی
چہ قایم وی پہ مقام ځما دیار

د هغو فرمان آمان دے د ایمان
چہ کلام ئے وی کلام ځما دیار

د هغو خدمت کبنں ہیر ثمر موندے شی
چہ دربان وی خاص پہ بام ځما دیار

د هغو فقیری عین سلطانی دہ
چہ مدام وی خوک غلام ځما دیار

**********

---

چہ رنگین شہ ستا رخسار پہ توروزلفو
غمرین زړګے ځما شہ بے تاب ولے

ماورا چہ پہ فطرت سرہ محکوم دي
بے فرمان شہ لہ فرمان نہ مرتاب ولے

ماکیان د بیابان شناوری کړی
دا کاهل پہ ساحل ناست دے مرغاب ولے

چغنده بلبل د باغ لاهوتی وی
په پیران کښې د ناسوت شوے غراب ولے
په سنت اؤ په کتاب اتیان فرض دے
تا نیسل دے له بدعت نه محراب ولے
د توحید بیړئ د هیچا نه غرقیګی
تا جوړ کړ دے له هوا نه ګرداب ولے
میکا ئیل د زمانے والی د فیض خپل
جاری کړ دے له سید پوره میزاب ولے
د غلام ایام به تام په ترانه شی
سوز په تار کښې د قدرت شه رباب ولے
*******************

---

د مشرکانو په شرکت کښې تبا هی د وی
ستا توحید جاری دوی
توحیدجاری توحیدجاری توحیدجاری د وی
ستا توحید جاری دوی
مشرک هلاک کړے مول مسلم چالاک کړے مولا
دمسلمان مسلمانئ کښې صفائ دوی ستا توحید جاری دوی
توحیدجاری توحیدجاری توحیدجاری دو ی
ستا توحید جاری دوی
رسم و رواج د جهان خراب مزاج د جهان

د بدعتیانو په بدعت کښې تباهي دوی ستا توحید جاری دوی

توحیدجاری توحیدجاری توحیدجاری د وی

ستا توحید جاری دوی

بدعتی پرېږده بدعت علتی مکړه علت

د مصطفی سنت ساری دوی ستا توحید جاری دوی

توحیدجاری توحیدجاری توحیدجاری د وی

ستا توحید جاری دوی

نقشبندی غلامه نظم بندی نظامه

ستا په محفل کښې د توحید غزل بازی دوی

ستا توحید جاری دوی

توحیدجاری توحیدجاری توحیدجاری د وی

ستا توحید جاری دوی

*******************

---

په مذهبونو کښې حنفی مذهب جاری د وی

پاك الله راضی د وی

مذهب حنیفه تل لره منیفه تل

قبول په سر څمونګ فرمان نعمانی دوی

پاك الله راضی د وی

الله راضی الله راضی الله راضی د وی

پاك الله راضی د وی

دروغ غیبت مکوه هم نمیمت مکوه

درون باطن کښ لہ اخلاصہ صفائ دوی

پاك الله راضی د وی

الله راضی الله راضی الله راضی د وی

پاك الله راضی د وی

د کوم مذهب شولے تہ د کوم مشرب شولے تہ

مسلمہ ستا مسلمانئ کښ یکتائ دوی

پاك الله راضی د وی

الله راضی الله راضی الله راضی د وی

پاك الله راضی د وی

غلامی ستا غلامہ مولا دے کړی تمامہ

خاص پہ میدان کښ دمحشر الله عافی دوی

پاك الله راضی د وی

الله راضی الله راضی الله راضی دوی

پاك الله راضی د وی

****************

# غزل

## دراحاطۂ دلِ مضطرب

(بے قرار دل کے)

محشری در سینہ دارم شور و غوغا کُو بکُو
منزلی در سینہ دارم سوز و سودا سُو بسُو

(میرے سینہ میں ایک محشر (بپا) ہے (لیکن میرا) شور و غوغا کوچہ بہ کوچہ ہے میری منزل میرے سینہ میں ہے' (مگر میں) (ہر طرف تڑپ اور دیوانگی میں (پھر رہا) ہوں۔)

دردرونم عشقِ لیلیٰ دردرونم شوقِ لیلیٰ
دردرونم حسنِ لیلیٰ دردرونم جستہ جُو
محشری در سینہ دارم شور و غوغا کُو بکُو

(لیلیٰ کا عشق شوق اور حسن اور اس کی تلاش سب میرے اندر موجود ہے (لیکن) میرے سینے میں ایک محشر بپا ہے اور میں کوچہ بہ کوچہ شور و غوغا کرتا پھرتا ہوں۔)

دردرونم اللہ اللہ دردرونم راز و ناز
دردرونم سینہ دارم دردرونم ہُو بہُو
محشری در سینہ دارم شور و غوغا کُو بکُو

(میرے اندر (دل میں) اللہ اللہ ہے۔ میرے اندر (دل میں) راز و ناز بھی ہے۔ میرے دل میں آہ زاری بھی ہے اور اللہ کی ہو کی آواز بھی ہے۔ میرے سینے میں ایک محشر بپا ہے اور میں کوچہ بہ کوچہ شور و غوغا کرتا پھرتا ہوں)

روئی خوباں دردرونم کوئی خوباں دردرونم
بوئی خوباں دردورنم وصل خوباں ہائے ہُو
محشری در سینہ دارم شور و غوغا کُو بکُو

(محبوب کا چہرہ، کوچہ اور بو میرے دل میں ہے (لیکن) وصل (کی محرومی سے) نالہ و فریاد کررہا ہوں۔ میرے سینے میں ایک محشر بپا ہے اور میں کوچہ بہ کوچہ شوروغوغا کرتا پھرتا ہوں۔)

ابراہیم اندر درونم اسماعیل اندر دردرونم
خنجرے اندر درونم خوں بہائی خُوں بخو
محشری در سینہ دارم شورو غوغا کوبکو

(میرے دل میں حضرت ابراہیمؑ اور حضرت اسماعیلؑ (کا خلوص) موجود ہے اور خنجر اور خون بہا بھی ہے۔ میرے سینے میں ایک محشر بپا ہے اور میں کوچہ بہ کوچہ شوروغوغا کرتا پھرتا ہوں۔)

اسمِ ذات اندر دردرونم ذاتِ ذات اندر دردرونم
روئی ذات اندر درونم خط وخاش گو بگو
محشری در سینہ دارم شورو غوغا کوبکو

(ذاتِ باری تعالیٰ کا اسم بلکہ خود ذات اور روئی ذات میرے دل میں ہے اور میں خط وخال کی گفتگو میں مصروف ہوں، میرے سینے میں ایک محشر بپا ہے اور میں کوچہ بہ کوچہ شوروغوغا کرتا پھرتا ہوں۔)

بے قرار راست ایں نظام بے قرار است خاص وعام
بے قرار است ایں غلام در آرزو از توبتو
محشری در سینہ دارم شورو غوغا کوبکو
منزلی در سینہ دارم سوزو سودا سُو بسُو

(یہ نظام عالم اور (یہاں کے) خاص وعام بے قرار ہیں۔ یہ غلام ذاتِ باری کی آرزو میں بے قرار ہے۔ میرے سینے میں ایک محشر بپا ہے اور میں کوچہ بہ کوچہ شوروغوغا کرتا پھرتا ہوں۔ میری منزل میرے سینے میں ہے اور میں ہر طرف تڑپ اور دیوانگی میں پھر رہا ہو۔)

## دعا طریقہ نقشبندی

پہ طریقت کښں طریقہ نقشبندی دوی      ستا نقشبندی دوی

نقشبندی نقشبندی نقشبندی دوی      ستا نقشبندی دوی

سرهندی پیره روشن ضمیره

ستا پہ ارشاد کښں مداما ذکر قلبی د وی

ستا نقشبندی دوی

څما باطن نورانی      څما هر نور انی

خدایا ګویا پہ ذکر ستا سره سری د وی

ستا نقشبندی دوی

نقشبندی نقشبندی نقشبندی د وی      ستا نقشبندی دوی

زړه مے آباد لره      پہ ذکر ښا د لره

تابنده نور تابنده نور هم د روحی د وی

ستا نقشبندی دوی

نقشبندی نقشبندی نقشبندی د وی      ستا نقشبندی دوی

سید پوری څوانہ      ستا لہ فیضان

پہ تجلی سره جلوه څمونګ خفی د وی

ستا نقشبندی دوی

نقشبندی نقشبندی نقشبندی د وی      ستا نقشبندی دوی

جلوه اخفی څما      حال کہ صفا څما

ستا پہ سودا کښں د غلام بیان شکری د وی

ستا نقشبندی دوی

نقشبندی نقشبندی نقشبندی د وی      ستا نقشبندی دوی

په څه رنګه غیبانه چه ده سودا ځما له تا سره
په څه رنګه حضرانه به وی غوغا ځما له تا سره

ته په خپل کرم کریمه ته په خپل رحم رحیمه
په مدار عفوانه د وی صبا ځما له تا سره

د کمال له خاصیت نه د جمال له زیب زینت نه
په محشر کښې خندانه د وی لقا ځما له تا سره

د غفور صفت له پاره د صبور صفت له پاره
په ایمان هم ختمانه د وی خا تمه ځما له تا سره

د غلام غریب ژړا هم په روئ د مجتبی هم
له شان فضلانه د وی مجیبا ځما له تا سره

*****************

---

ګرم شوے دے درون بیرون ځما
نرم شوے دے د خیال مجنون ځما

دا ګرمی به همسری شی د نرمئ
ګڼې وړ شوے دے درون بیرون ځما

په هوس کښې د خواهش حملے شوے تیزے
په لرزان شو پریشان ژوندون ځما

له قدرته رهائ غواړه غلامه
غلبه شه اندرون جنون ځما

لہ قدرتہ رھائ غواړه غلامہ
مقصوره شو اندرون مضمون څما

****************

پہ جلوه شہ ستا جمال د رخسار بیا بیا
سیخ قطره شہ زړه څما پہ انګار بیا بیا

صبورئ کښ ما آرام موندلے نہ وو
بے صبری شوه مجبوری پہ دیدار بیا بیا

هر تدبیر پہ تصور سره کیدے شی
غلبہ پہ تصور شہ اغیار بیا بیا

ستا دخال پہ خیال څما حال پہ آرام وو
بے پایان شہ پریشان ګرفتار بیا بیا

د غلام د غلامئ تدبیر خطا دے
خو واسع دے مغفرت د غفران بیا بیا

****************

د آفتاب ګرمی لہ کومہ دے نما کړه
دمهتا ب رنړه لہ کومہ دے ګویا کړه

لہ جلالہ جلوه ګر دے آفتاب
لہ جمالہ جلوه ګین دے مهتاب

لہ آفتابہ هنگامہ د روز شوه جوړه

لہ مهتابہ هم د شپے هنگامہ جوړه

چہ جمال شی لہ اغیاره پہ حجاب

گویا راشی پہ مهتاب باندے سحاب

چہ برقہ شی د جلال پہ جمال

تیزرفتار د عاشقئ شی پر وبال

د جلال جمال دوه پر دعاشقئ دی

وصول شوی پہ مذهب د دلبرئ دی

د سالک سلوک پہ دے مشرب موندے شی

د عارف منزل پہ دے مطلب موندے شی

آفرین دے دغلام پہ تصور وی

فضل پاك دے مداما د ده باور وی

غلامی دغلامانو دا رونق دے

آموختہ لہ عارفانو دا سبق دے

****************

برگ پان د پہ لبان کړه مالیده

عاشقان د پہ نیران کړه تاویده

د کباب غونډے جلیا شوم اندرون کښ

لہ هجران نہ عاشقان وي نا لیده

د دیدار پہ بیدارے بہ بیداریگی
د ناسوت پہ گهوارہ کښں خوابیدہ
د ویصال پہ تمنا بہ شی نمنا ک
چہ رشحات شی لہ فیضان نہ پاشیدہ
کہ غلام وائ ځما نصیبہ څہ شوے
وایہ غم دے لہ ازل نہ تراشیدہ
پہ تدبیر سرہ تغیر د تقدیر نشی
بے هودہ دی د دے دهر لا فیدہ
د غلام مضمون لہ سوزہ نہ پیدا دے
هلہ خوند کہ چہ لہ سوز وی ناشیدہ

******************

---

د منهدس پہ هندوسہ کښں معرفت نشتہ دے
د فلسفے پہ نزاکت کښں هیڅ عبرت نشتہ دے
بت پرستی د بدعتیانو طبعیت دے خبیث
ظاهر با طن کښں د دوئ بوئ د سنیت نشتہ دے
درواجی عمل رواج لکہ خراج د حرام
چہ جوازت ئے پہ مذهب کښں د اجرت نشتہ دے
د مشرکانو لعینانو پہ شرکت دے لعنت
پہ حکومت د عدالت کښں ئے عزت نشتہ دے

هر رواجي به له رواجه شرمنده وى صبا
نن ئے په دين دشريعت كښ هيڅ حرمت نشته دے
پير آفرين دے د سنى په سنيت غلامه
د چهارمذهب به هرمشرب كښ ئے ردت نشته دے

****************

---

د ملايئ په لغت مه غو ليگه ملا به نشے
په رواجي علمونو مه غو ليگله رها به نشے
د فقيرئ په نوم فقيره دفقير څه مطلب
د گدائ په لقب مه غو ليگه گدابه نشے
د شيخوخت دعفافت ددينداريئ بانگونه
لکه دخر بے ځايه مه وايه رسوا به نشے
د بل عيبونو گنا هونو ته نظر مکوه
په عدالت كښ شرمنده روز عقبا به نشے
دراز اميد دخپل حيات په طوالت مکوه
نادم په مرگ مفاجات سره صبا به نشے
امتحانا غلامه پريږده اهوائ كارونه
بے له تقوى نور دباطن ستا مجلا به نشے

******************

---

له غيرالله نه په مشکل کښې مدد غواړے ولے

جوندے خدائ پريږدے په مرده پسے لاړے ولے

تا په الله رسول کتاب چه نن ايمان راوړدے

صبا ئے پريږدے دمخلوق په درکښې جاړے ولے

د مقبرے زيارت سنت دے د عبرت لپاره

خلاف سنت شوے ته له مړوحاجت غواړے ولے

کار دشرکت بدعت کوے د عبادت په طمع

پريږدے صراط مستقيم ځے په ويجاړے ولے

نفس اؤ شيطان لکه سپی په هر ډيران غپوی

خاص دتوحيد په چوب ئے نه ماتوے داړے ولے

لاس په نام وائے نخلع نترك من يفجرك

بيا صبا درومے د شيطان سره هم غاړے ولے

اياك نعبد واياك نستعين لو لے تل

بے انصافه لاس په نام بيا قبر ته ولاړے ولے

دخدائ دوستان په دوستئ نسه په خدائے مه نسه

د مصطفی قدم دپريخو بل خوا لاړے ولے

ومن يدع مع الله الا ها اخرحجت نه لری

بلا برهان ته د خر پشان ناړے ولے

چہ اعتصام پہ حبل الله لرے محکم پہ گردن
نہ پریکوے د غیرالله رسئ لہ غاړے ولے
چہ پہ وحدت دذوالقوت مولی نازیگی غلام
رقیبہ تہ د خسودت پہ غم لتا ړے ولے
د بیت ا لله مسجد عزت مثل زیارت نکوی
د قال سنی ئے د بدعت پہ حال ولاړیے ولے
پہ چار مذهب کبں گورم ستا مشرب موندلے نشی
نہ شوکوے د مشرکئ زنار لہ غاړے ولے
د ناروا روا تمیز نکوے بے تمیزه
لکہ حیوان حلال حرام دواړه رانغا ړے ولے
پہ غیرا لله مولی گرنګ ملا مغروره نکړے
نقشبندی درخواست پہ لاس لہ دره ئے شاړے ولے
*****************

---

ستا دا خپل عمل دے ستا پہ لاس کبں داس
برید نہ کړے انگشتان د خپل لا س
پنج انگشت ئے پنج بنا پنځہ نماز دی
طهارت ظاهر باطن کړه لہ اجناس
تہ لہ ویرے تقوی ویر مغروره نشے
لہ غالب خدائ نہ غالب لره هراس

په حدودو کښې تفریط افراط ونکړې

په اوقا تو مکتوبه مه وهه ګاس

تهلکه د مو هوبه اوقاتو مه کړه

په حضور سره سرور لره انفاس

په حدورو کښې شریک د مولا نشته

فقط یو دے اطا عت د خیر الناس

له غفلت نه ئے بیدار لره کریمه

د غلام دغلامئ وساته پاس

******************

---

خاونده پاکه د رواج حدود فانی لره

خپل حدود جاری لره

حدود جاری حدود جاری حدود جاری لره

خپل حدود جاری لره

د چشتیا یو ړولونه دلا چی بنګ تمبلونه

دسرتورئ سرتور سرونه سرسامی لره

خپل حدود جاری لره

حدود جاری حدود جاری حدود جاری لره

د پائمان سپین با نګیان سنړګان غویان د لوئ څوان

اړه کړهئ پنج پائ روګ کښې تبا هی لره

خپل حدود جاری لره

حدود جاری حدود جاری حدود جاری لره

د آخوند بابا داعیان دپیر بابا نازران

د دوئ عمل کښ لویہ خدایا بربادی لره

خپل حدود جاری لره.

حدود جاری حدود جاری حدود جاری لره

کوتک ماران د کوڅو گدا گران د کوڅو

اول آخر د پنج یاؤیزی رسوائ لره

خپل حدود جاری لره

حدود جاری حدود جاری حدود جاری لره

دا لنگوټیان د لنگوټ دا هل مارانو پر پوټ

د دوئ مستئ کښ بے باکئ کښ کوتاهی لره

خپل حدود جاری لره

حدود جاری حدود جاری حدود جاری لره

خدائ اؤ رسول نہ وائ څلور مذهب نہ وائ

د بدعتیانو پہ بدعت کښ بد خواهی لره

خپل حدود جاری لره

حدود جاری حدود جاری حدود جاری لره

سنگسارد سنگ وی د چیل روک دبدرنگ وی دچیل

مردودزنان د بے دینئ ټول غضبانی لره

خپل حدود جاری لره

حدود جاری حدود جاری حدود جاری لره

ځوک کتابونه ګوری     ځوک چه فالونه ګوری

د علم غیب په دعوه دارو وبائ لره

خپل حدود جاری لره

حدود جاری حدود جاری حدود جاری لره

کافی شافی د غلام     هادی عافی ذوالاکرام

له ماوراؤ نه په امداد کښ ما خالی لره

خپل حدود جاری لره

حدود جاری حدود جاری حدود جاری‌لره

*************

---

ملا ته په ملائے شوے غلط ولے

له معنی شوے بے پروا په نقط ولے

له معنی په مناسک دقرب تمام شی

تا همت کړه په غفلت مسلط ولے

بزرګی د ناقصا نو ابتلاء ده

ته غره شوے د پیرئ په نشط ولے

د رواج پیری شیخی غارت ددین دے
داخل نہ شوے د اسلام پہ نمط ولے
خان بندہ بولے د خدائ تابع دنفس ئے
تا صراط المستقیم کرہ غلط ولے
مرغ جان د علونو سفلوی شہ
پہ نفسی منزل روان شوے فقط ولے
دے هموار دغلامئ میدان غلامہ
نفسی اس دے پہ سنگ لاخ کرہ لغط ولے
*******************

---

تہ چہ گرځے کوگ لہ خیالہ واورہ چرتہ کوگ نہ نشے
تہ د مرغ موت پہ خولہ کښ یارہ چرتہ چوگ نہ نشے
تہ چہ مرغ قفس کښ تنگ لرے هوس سرہ
آخرا بہ خلاص شے دا قفس دے چرتہ پوگ نہ نشے
تہ چہ دا خندا غوغا کوے لہ خاص و عام سرہ
دا پرقا برقا روئے بارہ تا لہ چرتہ سوگ نہ نشے
دا ضربی عروق نبضی شریان چہ تل جریان کوی
عاقبت بے جانہ گرفتارہ چرتہ روگ نہ نشے

دا زهر گنهیر گذران غلام چه په دنیا کوی

امید چه پس له مرگه له غفرانه چرته خوگ نه نشے

*********************
___

د مو حد په سر که کیږدی څوک آره

له دے سره ئے تر خپو کړی دوپاره

یا په سرو سپینو ئے ړوب کاندی بدن

یا د اور لمبے د ده کړی چا پیره

نه ئے خوف نه ئے رجا وی له مخلوقه

نه ئے ړاړ په غیرالله وی خاطره

د توحید اصل بنیاد دے دغه کار

د غلام تقریر دے نه وی قا صره

*******************
___

په دنیا هغه دے ولی الله

چه منقوش لری په قلب نوم دالله

په دنیا کښې هغه څوک دے ارجمند

چه مدام لری په خیال نوم دالله

په دنیا کښې هغه کس دے بخته ور

چه خفیه تکرا روی نوم د الله

پہ ششدر کښې هغہ خلقو گونتہ یوړه
چہ باطن کښې یادوی نوم د الله

پہ عقبا کښې هغہ خلق ارجمند دی
چہ زړه گل کاندی پہ نوم د پاك الله

پہ دنیا کښې هغہ کس سعادت مند دے
چہ ئے ذکر فکر نوم وی د الله

پہ میدان کښې هغہ خلقو بازی یوړه
چہ درون ئے کہ روشن نوم د الله

مجدد نقشبندی سید پوری پیره
تو جہ کړه د غلام نوم د الله

*******************

---

بند وحصار جسم ناسوت دے ملکوت دپاره
جسمانیت ده جیل خانہ دے ملکوت پاره

ځما کردار بہ وی پہ شمار پہ حصار دجسم
دا ضرورت خو تریاقت دے ملکوت پاره

څوورځے شپے بہ اندیخنے وی د خوراک د پوشاك
آخر دا کار بہ وی رفتار د ملکوت پاره

پہ توره شپہ کښې دنا سوت ټکرے خوری لہ حرص
پہ آخر دم بہ شی بے دم د ملکوت پاره

لکہ د خر کوی گذر د خیراؤ شر برابر

ستا حقیقت دے عاقبت د ملکوت پارہ

ملکوتی نورانی کور د کړه خپل تور پہ غفلت

د خدائ طاعت نورانیت دے ملکوت پارہ

د غلامانو پہ خدمت کښں وی رضا د مولا

دارومدار د شریعت دے ملکوت پارہ

*********************

---

د شمس الدین سید پوری کور لہ ځم

نورانی نور لہ ځم

خپے ابلہ خپے لہ سر سرتور ځم خوارہ شے اور لہ ځم

فقیر محمد لہ ځم صفا محمد لہ ځم

عبد الرازق لہ ځم عبدالشکور لہ ځم

ځہ د یحي اټکی کور لہ ځم

نورانی نور لہ ځم

خپے ابلہ خپے لہ سر سرتور ځم خوارہ شے اور لہ ځم

د شیخ سعدی بلغاری آدم بنور انوری

سر هندی پیر احمدی باقی با الله دهلوی

د امکنی خواجہ حضور لہ ځم

نورانی نور لہ ځم

خپے ابلہ خپے لہ سر سر تور ځم

محمد درویش ګورمہ محمد زاهد ګورمہ

عبید الله وینمہ یعقوب چرخی ګورمہ

بهاؤ الدین ولی منظور لہ ځم

نورانی نور لہ ځم

خپے ابلہ خپے لہ سر سر تور ځم

خواره شے اور لہ ځم

سید کلال آمیر سماسی خواجہ پیر

علی رامیتی خیر محمود فغنوی شیر

عارف ریوګر د ستر ګو تور لہ ځم

نورانی نور لہ ځم

خپے ابلہ خپے لہ سر سرتور ځم خواره شے اور لہ ځم

عبد ا لخالق غجدوان یوسفی خواجہ همدان

بو علی هم فارمدان ابوالحسن د حرقان

د با یذید بسطامی شور لہ ځم

نورانی نور لہ ځم

خپے ابلہ خپے لہ سر سرتور ځم خواره شے اور لہ ځم

جعفر صادق خواجہ محمد قاسم خواجہ

سلمان فارسی خواجہ صدیق اکبر خواجہ

محمدی اکبری نور لہ ځم

نورانی نور لہ ځم

خپے ابلہ خپے لہ سر سرتور ځم خوارہ شے اور لہ ځم

د مصطفی پہ صلہ دمجتبی پہ صلہ

غلام غریب الله غفور لہ ځم

د مرتضی پہ صلہ خیرالوری پہ صلہ

نورانی نور لہ ځم

د شمس الدین سید پوری کور لہ ځم

خوارہ شے اور لہ ځم

************

---

آخرا بہ ووینم پہ سترګو ستا دیدار

کاشکی چہ نہ وینم پہ سترګو سبتا دیدار

عمر دهجران پہ ما تیر شہ د خسران پہ ما

را بہ شی پہ لاس کلہ ستا د زلفو تار

خاک ځما دګور پورتہ بہ کړی شور

کفن چہ ځما ووینی ستا پہ خون رنګدار

هر طرف هر لور تہ شور بہ شی راپورتہ

هر عاشق چہ وګوری ستا د مخ ګلزار

نیاز چہ پہ دنیا کوی ناز بہ پہ عقبا کوی

خوار غلام چہ وګوری ستا کرم بسیار

خیال د دلدارئ ځما بال ددلبرئ ځما

زر ده چہ پرواز کړی غلام ستا خریدار

## *****دعا د ترقئ د اسلام*****

خاونده پاکہ د اسلام بنیاد آباد لره خپل اسلام آباد لره

اسلام آباد اسلام آباد اسلام آباد لره خپل اسلام آباد لره

پاینده باد اسلام رونده باد اسلام

اول آخر کښں د مسلم حاصل مراد لره

خپل اسلام آباد لره

اسلام آباد اسلام آباد اسلام آباد لره خپل اسلام آباد لره

مکوه خنګ د اسلام مړ شہ پہ ننګ داسلام

دآخرت پہ زندګئ سره دل شاد لره

خپل اسلام آباد لره

اسلام آباد اسلام آباد اسلام آباد لره خپل اسلام آباد لره

رسم و رواج مکوه اسلام تاراج مکوه

د مصطفی پہ اطاعت کښں انقیاد لره

خپل اسلام آباد لره

اسلام آباد اسلام آباد اسلام آباد لره خپل اسلام آباد لره

اسلام مقصود ځمونږه ایمان بهبود ځمونږه

په دیانت ځمونږ خپے لکه اوتاد لره

خپل اسلام آباد لره

اسلام آباد اسلام آباد اسلام آباد لره خپل اسلام آباد لره

لکه یے یے فقیره شه داسلام په پیره

دسرو دیانو ړمګرانو شان برباد لره خپل اسلام آباد لره

اسلام آباد اسلام آباد اسلام آباد لره خپل اسلام آباد لره

هغه پاك ذاته به وی هغه نیک ذاته به وی

هرنګیا لے دخپل اسلام مدام آباد لره خپل اسلام آباد لره

اسلام آباد اسلام آباد اسلام آباد لره خپل اسلام آباد لره

قربان کړه ما په اسلام تمام جهان په اسلام

ځمونږ جوندون کښ اسلامی جذبه جهاد لره

خپل اسلام آباد لره

اسلام آباد اسلام آباد اسلام آباد لره خپل اسلام آباد لره

توحید جذبه د اسلام غیرت لمبه داسلام

د غلامۍ شرر په هرطرف افتاده لره خپل اسلام آباد لره

اسلام آباد اسلام آباد اسلام آباد لره خپل اسلام آباد لره

*********************

مسلمان کہ داسلام پہ جزبہ مړشی

پہ توحید لکہ پتنگ غوندے لوغړ شی

د مرگی ئے لہ حیات نہ اولی دے

چہ د عشق پہ لارے مړ بہ شی کلہ مړ شی

ابدی حیات پہ دے مرگ .موندے کیگی

چہ پہ دین داحمدی باندے خوک مړ شی

خلاصہ دغلامئ جهاد د دین ذے

بے جهادہ لکہ خر بے سایہ مړ شی

*****************

---

لہ تانہ غواړمہ تا لہ تانہ غواړمہ تا واخلہ لہ مانہ ما

نگارہ ستا یمہ ستا نگارہ ستا یمہ ستا

لہ تا فدا فدا واخلہ لہ ما نہ ما

کہ مال و سر دے څما کہ حال ابتردے څما

کہ سیم و زر دے څما کہ تاج افسردے څما

قربان لہ شا نہ ستا واخلہ لہ ما نہ ما

نگارہ ستا یمہ ستا نگارہ ستا یمہ ستا

واخلہ لہ ما نہ ما لہ تانہ غواړمہ تا واخلہ لہ ما نہ ما

لہ تانہ غواړمہ تا لہ تانہ غواړمہ تا واخلہ لہ مانہ ما

حورے غلمان د جنت　　باغ و بوستان د جنت

شرین گذران د جنت　　ناز و عنوان د جنت

نہ قبلوم یے لہ تا نہ قبلوم یے لہ تا　　واخلہ لہ مانہ ما

لہ تانہ غواړمہ تا لہ تانہ غواړمہ تا　　واخلہ لہ مانہ ما

نگارہ ستا یمہ ستا　　نگارہ ستا یمہ ستا

لہ تا فدا فدا　　واخلہ لہ ما نہ ما

نہ وائ سوز صنم　　ربوہ دجان ودلم

لقا ئے روز غم　　کشیدہ ہوش وفہم

مہ شو جدا جدا مہ شو جدا جدا　　واخلہ لہ ما نہ ما

لہ تانہ غواړمہ تا لہ تانہ غواړمہ تا　　واخلہ لہ مانہ ما

نگارہ ستا یمہ ستا　　نگارہ ستا یمہ ستا

لہ تا فدا فدا　　واخلہ لہ ما نہ ما

غلام غریب یمہ ځہ　　ستا عندلیب یمہ ځہ

گدا عجیب یمہ ځہ　　گدا نصیب یمہ ځہ

یم یے پروا لہ سوا یم یے پروا لہ سوا　　واخلہ لہ ما نہ ما

لہ تانہ غواړمہ تا لہ تانہ غواړمہ تا　　واخلہ لہ مانہ ما

نگارہ ستا یمہ ستا　　نگارہ ستا یمہ ستا

لہ تا فدا فدا　　واخلہ لہ ما نہ ما

## *****نغمہ سوز*****

کہ تماشے لہ ځمہ کہ تماشے لہ ځمہ پہ طلب ستا یمہ ځہ

کہ نندارے کومہ کہ نندارے کومہ پہ غرض ستا یمہ ځہ

ستا پہ سودا یمہ ځہ ستا پہ غوغا یمہ ځہ

عشق لیلی یمہ ځہ مجنون گدا یمہ ځہ

کہ گدائ کومہ کہ گدائ کومہ پہ مطلب ستا یمہ ځہ

د یے د ستئ لہ د ستہ د یے نگئ لہ دستہ

د نا کسئ لہ د ستہ د یے کسئ لہ دستہ

کہ واویلا کو مہ کہ واویلا کو مہ زخمی لہ تا یمہ ځہ

کہ تماشے لہ ځمہ کہ تماشے لہ ځمہ پہ طلب ستا یمہ ځہ

کہ نندارے کومہ کہ نندارے کومہ پہ غرض ستا یمہ ځہ

پہ زړہ رنځور یمہ ځہ لتا مهجور یمہ ځہ

مثل منصور یمہ ځہ پہ سولئ سور یمہ ځہ

کہ انا الحق وایمہ کہ انا الحق وایمہ پہ سکرستایمہ ځہ

کہ تماشے لہ ځمہ کہ تماشے لہ ځمہ پہ طلب ستا یمہ ځہ

کہ نندارے کومہ کہ نندارے کومہ پہ غرض ستا یمہ ځہ

ستا د دیدار طلبدار ستا د جمال خریدار

ستا رخسار انتظار ستا د خمار هوسدار

کہ شورغوغا کومہ کہ شورغوغا کوم هوادار ستا یمہ ځہ

کہ تماشے لہ ځمہ کہ تماشے لہ ځمہ پہ طلب ستا یمہ ځہ

کہ نندارے کومہ کہ نندارے کومہ پہ غرض ستا یمہ ځہ

د غلامئ پہ قلم زړګے ځما شہ رقم

نہ پیژہ نم بیش وکم حوالہ ستا شوم صنم

خاص دتوحیدپہ چغو خاص دتوحیدپہ چغو ګویا لتا یمہ ځہ

کہ تماشے لہ ځمہ کہ تماشے لہ ځمہ پہ طلب ستا یمہ ځہ

کہ نندارے کومہ کہ نندارے کومہ پہ غرض ستا یمہ ځہ

## *****نغمہ سوز*****

ستاد تقدیرتصور ستاد تقدیرتصور دیدار ځما ځما

ستا د تدبیر تفکر ستا د تدبیر تفکر روزګار ځما ځما

لہ فکره پاک سره لہ ذکره پاک سره

قدم چالاک سره سیر د افلاک سره

ستا دبهار پہ طرف ستا ددلبار پہ طرف رفتار ځما ځما

عشق دلبر لرمہ زخم جګر لرمہ

تیر و خنجر لرمہ زړګے پرهر لرمہ

د بلتانہ پہ انګار د بلتانہ پہ انګار قرار ځما ځما

د سیم و تور پہ بدل د ما ل و سر پہ بدل

د هر هنر پہ بدل د اول آخر پہ بدل

کلہ بہ راشی پہ لاس کلہ بہ راشی پہ لاس نګار ځما ځما

رحما نیت پہ امید　　غفرا نیت پہ امید

د عنایت پہ امید　　سبحا نیت پہ امید

شاید چہ راشی پہ لاس شاید چہ راشی پہ لاس غفار ځما ځما

دا د غلام غلامی　　د هدایت صدائ

د عندلیب نوائ　　شوه د گلاب شیدائ

پا ینده آباد　　پاینده باد آ باد　　گلزار ځما ځما

ستاد تقدیرتصور　　ستاد تقدیرتصور　　دیدار ځما ځما

ستا د تدبیر تفکر　　ستا د تدبیر تفکر　　روزگار ځما ځما

***** قرآن شریف *****

دا د عشق پہ رنگ مرقوم کتاب د چا دے

نا شیدہ پہ رندانہ مفهوم د چا دے

چہ شیخان ئے لہ خلوت نہ پہ جلوه کړه

لہ ہیر سوزه ناخوانده کتاب د چا دے

زاهدان لہ خپلہ زهده توبہ گیر شو

دا بے رویا بے ریا کتاب ذ چا دے

چہ غلام د غلامئ اتکل ترے زده کړه

دا لہ عشق نکتہ چین کتاب د چا دے

چہ مقصود ئے لا الہ الا الله دے

منزل پہ رسالت کتاب د چا دے

چہ موقوف پہ د غلام دین وایمان شہ

ملا وایہ د لاریب کتاب د چا دے

چہ استاذ شہ د توحید داستاذانو

محمد رسول الله خطاب صفا دے

د ایمان رکن ثانی عرب لسانہ

قریشی هشمی نسل شاب خُما دے

کہ افکاردبلاغت مشعل د نور شی

یو پرتو د غلامئ کتاب خُما دے

کہ مرقوم زیر قلم د اسماعیل شی

ذبیحہ ابراهیمی کتاب جُما دے

شینده کہ لیاقت شی د بلیغ

جراسی زبان حرفی کتاب خُما دے

کہ منظور پہ منظورئ د کبریا شی

سرمایہ د غلامئ کتاب خُما دے

کہ بیمار د عاشقئ لره ورکړئ

معا لج د دلبرئ کتاب خُما دے

کہ طلب دبلاغت پہ سفر درومی

منزل گاه تہ راه نما کتاب خُما دے

ملغره کہ د خری پہ غاړه نشی
جوهری د معرفت کتاب حُما دے

قدردان نقش بندیان کہ حسد پریږدی
فیضانہ د سیدپوری کتاب حُما دے

قدردان دے دبیان حُما آمان وی
د دعا پہ رنگ رنگین کتاب حُما دے

قدردان د معرفت کہ را پیده شی
پہ توحید کښ ګړنګوال کتاب حُما دے

پہ شانہ نشوے تورے زلفے توره شپہ کښ
پریشان ځکہ حرفی تناب حُما دے

**********

خدائے دسرکاندی حُما د زړه سودا
خدایا تام کړے حُما د زړه اشنا

چہ لہ تا دے ما سوای ما ترے رها کړے
د توحید ګوهر پہ لا راکړے یکتا

د غفلت لہ فقیریئ نہ مے کړه خلاص
د عرفان پہ دولت راکړه غنا

هدایت مے کړے اول آخر نصیب
دل افروز مے کړے د شرع پہ بشرار

معرفت چہ لوئ دولت عین بھبود دے
دا بخشیش کاندے پہ جاہ د کبریا
تن د روح اول تیار پہ ھدایت شی
قوت ناک شی بیا د شرع پہ قوا
پس لہ ھغے د مقصود منزل تمام شی
چہ قر بت کبں شی قریب د پاک مولا
خدایا دا دولت جاوید نصیب ځما کړے
پہ خاطر د پاک حبیب خیرالوری
دم قدم مے پہ قدم د پیغمبر کړے
مستقیم مے کړے پہ سنت الھدی
دا غلام پہ غلامئ کبں ہیر اغوج دے
رھائ غواړی پہ روئے د مصطفے

**********

---

دوبارہ بہ چمن گل شی بھار راغے
چغندہ ہے بہ ئے بلبل شی بھار راغے
د عاشق د زړہ حرم بشی حرم بیا
خندیدہ شیرین رفتار دلدار راغے
د خپل ھوشہ بہ مد ھوش مجنون د خیال شی
دواړو سترگو د لیلی کبں خمار راغے

ما وراى د لا الہ بہ یو لقمہ شی
دا ځما د الا الله خامار راغے

زیړ ګولونہ د ګلشن بہ خو شبویہ شی
سقایہ پسے سا تی کشتہ کار راغے

د شیخانو پہ شیخئ بہ کړی اور پورے
پہ حلقہ کښ د سنت تابعدار راغے

بدعتیان دے خدائ رہا کړی لہ بدعتہ
د سنت اؤ د کتاب خریدار راغے

پاک مولا د د توحید ګلولونہ ډیر کړی
بدعتی باندے د حکم سنګسا ر راغے

پہ روئ پاک د پاک حبیب سنت جاری کہ
رواجی باندے غضب د قہا ر راغے

استقبال لہ د مولا د سید پور راشی
غلامئ لہ ګړنګ وال خدمت ګار راغے

د یدار پہ طلب مست دیوانہ راغے
د مشال پہ لنبہ چست پروانہ راغے

لہ خددیئ بشی بیخود فنا ګزین دے
پہ حیرت کښ د وحدت یګانہ راغے

لہ هوشیاره نہ ئے لار د منزل ذده کړه

پہ چولان کښں د ناسور بیگانہ راغے

دماغ آیاغ ئے سیر د وطن غواړی

د بهار موسم شہ بوئ دریحانہ راغے

رنگا رنگ گولونہ غواړی د توحید نن

پہ حلقہ کښں غالب نور لیغانہ راغے

مجنون شوے د توحید پہ ترانو یم

خندیده سید پوری پیر فیضانہ راغے

پہ غمزه د سترگو یو اشاره بویہ

غلامئ کښں گرنگوال دیوانہ راغے

****************

---

هر نظر د دلبرانو یو جلباب دے

زړه راخکونکے د مژگانو پہ پتناب دے

چہ د مخ لنبہ پہ کوم ضمیر کہ پورے

سوختہ شوے دعاشق با طن کباب دے

چہ پہ داغ د غلامئ کښں خوک داغدارشی

دواړه سترگے ئے ناسور غوندے سیلاب دے

***************

---

پهلوان خو پهلوان د صبورۍ دے

نوجوان خو نوجوان د سرورۍ دۓ

لہ دعوے بہ افتادہ شی مدعی خود

فتح مند خو فتح مند د مشکورۍ دے

غره مہ شہ د عمل پہ خزانہ خپل

خاص عمل خو لوئ عمل د حضورۍ دے

پاکیزه چہ شی لہ شیبہ اندرون

دغہ نور د صداقت د مزدورۍ دے

د غلام هنر پیشہ د غلامئ ده

لہ فطرتہ آماده پہ مجبورۍ دے

*****************

---

ستا لہ زلف پیچیده وی فکر پاک

مجاور سره پنجہ وی تارد تاک

لکہ برق بہ پہ عالی طبقاتو تیر شی

چہ د فکر عقاب خلاص شی لہ مغاک

چہ لہ شرک ریا بدعت رواجہ تیر شی

شفاعت بہ کړی ضرور صاحب لولاک

لہ صراط مستقیمہ بہ وانہ وړی

زین شده ابلق د فکر پہ فتراک

چہ حال شی لہ مولا نہ فکر خیال

د غلام جدائ هیڅ نہ لری باک

*****************

---

نشتہ نشتہ دے دلتہ کښں یودردمند

نہ فکرت کښں یکتا نہ خیال بلند

چہ سایئرشی پہ سیر د افلاکو کښں

چہ طیران کوی پہ صف داملاکو کښں

د رحدت پہ دولت بشی فتحمند

د عزیزپہ عزت بشی ارجمند

کلہ کلہ سید پوری دلبار تہ ځہ

د وحدت د پارہ دے گلزار تہ ځہ

آهنگ کړہ پہ سنگ د غلام کښں گذر

لگ ہیر بہ توحیدہ درکړی خبر

******************

---

خبر نہ یم چہ ضیا یم کہ آفتاب

نور کہ ځہ نور یم د ماہ تاب

ضیاؑ نہ ئے تہ پر تو ئے د ضیاؑ

چرتہ تہ اؤ چرتہ اصل د آفتاب

ته چه خپل احساس کوے اثر د نور دے

هسے نه ئے لکه چه نور دے د ماه تاب

ممکن څه دے یو اثر دے د قدرت

لکه جوړ صورت په بحر د حباب

چه قلم د ایرادت اراده وکړی

د مکان لکه نقطه قدرت کتاب

****************

---

د لا ئقانو لیاقت دے خدائ نصیب لره

د عارفانو معرفت دے خدائ نصیب لره

که په درگاه د لم یزل قبلیگی سوال د غلام

د اولیاؤ ولایت دے خدائ نصیب لره

د غلامئ سوز دے د سازه سره مل لره خدائے

څما د سوز درد جگر دے خدائ نصیب لره

***************

---

سره سرخی ستا دمضمون یو قطره څما د خون

مظهره ستا د رخسار د گرمی څما د خون

ستا لبان ار غوانی دوه ریشی څما د خون

سور پیزوان د اویزان سره ټوټه ځما د خون

سره چشمان ئےناغدارے دے انهار ځما د خون

ستا نظر لکہ نشتر الوده ځما د خون

د ابرو تار لکہ مار چشیده ځما د خون

دا ځما فکر دراز خلاصہ ځما د خون

دا ځما خیال بلند بخاره ځما د خون

دغہ فکر دغہ ذکر جوش خروش ځما دخون

دخدائ رنګ دے هوارنګ تعفن ځما د خون

د توحید پہ جلوه رنګ صفائ ځما د خون

خاص د عشق لہ تاؤتابہ حرارت ځما د خون

پہ توحید اؤ رسالت دے یقین ځما د خون

د ثرا نہ تر سماءؑ یو سیلاب ځما د خون

لہ ناسوت تر ملکوتہ ده غوغا ځما د خون

روحٔ اسباب دے دحیات نہ محتاج ځما د خون

د زمین هر یو مخلوق دے غلام ځما د خون

جنتونہ دوزخونہ نوکران ځما د خون

ویلا یت اؤ کرامت دار مدار ځما د خون

لیس المثل یو الله دے چون اؤ ګون ځما د خون

***************

---

نہ پو ہیگم دیوانہ یم کہ دانا
تمیزنہ کړم دآشنا لہ ناآشنا

اشنا یئ ذیارلس نیم کالہ پوره کړه
پاؤکم دوه ورځو کښ بیا شوم نا آشنا

پہ پنځمہ د شعبان روز شنبہ
جدا کیګی یو آشنا لہ بل آشنا

رابطہ د رفت آمد د هر یو دوست
مقطوعہ شوه لہ پہ قطعہ د آشنا

بود و باش مے د هوس یو ساعت تیر شہ
حلاوت د جیو و جان د هر آشنا

عبدالحق د رب الحق پہ حق پوره کړے
پہ رضوان اکبری د کړی آشنا

روحانی ځما وصال د خدائ نصیب کړی
موجل شہ جسمانی قرب د آشنا

هر آشنا بہ د آشنا سره آشنا شی
کہ مولا کړی د عرفان نہ خوک آشنا

غیرالله بہ همګی واړه وفات شی
هر آنی بہ لہ اتے سره آشنا

د لا هوت ناسوت پہ منځ کښې وسیلہ
فقط روح دے چہ لہ عشقہ وی آشنا
روح اول دے پہ قبول کښې د کمالہ
دا ناسوت بہ کړی لاهوت سره آشنا
ځہ چہ ګورم سراسر روحانیت دے
کہ صورت دے کہ ظلمت دے د آشنا
د غلام پہ حماقت اعتراض مکړه
عقل فکر ترے نہ وړے دے آشنا
د غلام پہ حماقت اعتراض مکړه
عقل فکر ترے نہ وړے دے آشنا

*****************

---

عفوه کړے مولا غریب بوړا لہ دے ملا سره
یخ مو کړے ځیګر حوض کوثر غوندے عطا سره
نصیب مےمغفرت دآخرت کړے پہ یوم الحشر
چالان مے پہ میدان کړے د حبیب کبریا سره
ځہ پہ ہیرمنت دپاک حضرت شفاعت غواړمہ
عفوه د نقصیر دیدار نبی المصطفی سره
خوش سرانیده آواز دلہ بانہ در آذان
نعره ئے اکبر نہ ختمہ شوه د عشاءِ سره

یعنی ماز خفتن و آخری آذان د عبدحق
نعره تکبیر طرز هندی صورت زیبا سره

خلط حضرامے بود در بخاری جد روی
جوش دم باشور بلغم.ضم شہ لہ صفرا سره

از مرض تا مرگ کارش بود توحیدتام
آثار د شهادت ئے وو ظاهر جبین سیما سره

انا لله و انا الیہ راجعون
ختم خاتمہ کړه د غلام خپلے رضا سره

**************

---

خاونده پاکہ صفا کړه ځما حالونہ
لہ ماسوا کہ رهاکہ ځما قالونا

ظاهرا قال مے د حال سرا ضم لره
خلاص لہ فساق نفاق ځما بالونہ

پہ ہیر الطاف لره صاف درون شفاف ځما
تیر لہ سما کہ ملاکہ ځما چالونہ

پہ غم دبار گر فتار ځہ پہ دار یم
د زلفو دام دے پہ گام ږدی ځما جالونہ

مرغ د ناسوت ملکوت تہ پرواز نکوی
د خیال سم دواړه ضم کہ ځما بالونہ

د زړه آرام د غلام هیڅ نظام نه لری
چه ځوان بوړا ترے جدا کړه ځما حالونه

نظر د خیال ستا په خال انحلال نشی
حجاب ترے بیرته نما که صفا خالونه

چه دلبری غمخواری افسری نه لری
خدائ دے کفن د بدن که ځما شالونه

**************

---

اے ځما د زړه آرامه راشه په آرام سره
اے بوړا لفظی گلفامه راشه په خرام سره

ما چه ته لیگلے وے مولا ته مے سپارلے وے
اے ځما حامی پیامه راشه له پیام سره

اے وحیدالوقت بوړا توحید کښں یکتا ئے فنا
اے فصیح خوانی کلامه راشه د کلام سره

اے ځما لیگلے یاره په خیر راغلے یاره
اے اول خوان سلامه راشه په سلام سره

اے مرورشوییاره ساعت کښں پخلا شوی یاره
اے ځما پخلا غلامه راشه د غلام سره

اے ځما عمده مشیره اے رسانده مشیره
اے د هر بنده نظامه راشه په نظام سره

اے رفیق در سفر اے شفیق در حضر

اے ځما پیک همامہ راشہ د همام سره

اے خدایا عبد حق مغفوره کړه پہ روئ د حق

اے ځما رب السلامہ راضی شہ پہ سلام سره

*****************

---

نصیب بہ وصیب شی و هر چاتہ خپل خپل

عمل بہ معلوم شی و هر چاتہ خپل خپل

سزا ئے اؤ جذائے د روا نا روا

بدل بہ رسیده شی و هر چاتہ خپل خپل

صداقت نفاقت عدالت شرافت

صلہ بہ وصول شی و هر چاتہ خپل خپل

د دنیا کشا کش رسوا کړم فشا فش

میزان بہ د ځان شی و هر چاتہ خپل خپل

شفاعت بہ حضرت کوی یوم الحشرت

ایطاعت بہ رسی و هر چاتہ خپل خپل

غلام چہ غلام ده تمامي رسل دے

مولا بہ رضا کړی وهر چا تہ خپل خپل

*******************

---

راکړه پہ لاس کښ ګلابی ګل ګل

رفع لہ ما کړه تلخی د فلفل

د دے خودي نہ د خود بے خود کړه

راکړه د وحدت شراب ململ

د لا الہ نہ ځم الا الله تہ

مرکب عطا کړه نورانیئ دل دل

د شاه سید پور فیضان کړه منشور

بیا ترے سیراب کړه مریدان کل کل

چمن د وحدت ګلشن د سکرت

ګل شوے غواړی غلامی بلبل

****************

---

یا رب المنانہ دا منت دے ما منلے دے

یا رب الغفرانہ مغفرت د ما غوختلے دے

ربنا اغفرلنا ذنوبنا اسرافنا

فی امرنا هادی هدایت د ما غوختلے دے

ربنا اتمم لنا انوارنا افرغ لنا

تہ منیر باد شاه ئے نورانیت د ما غوختلے دے

**************

---

سبحان الله سره لہ حمده

الحمد لله سره لہ حمده

الله اکبر کبیر ئے اکبر

مالك الملك ئے سره لہ حمده

شریک د نشتہ پہ سلطنت کښں

یکتا سلطان ئے سره لہ حمده

نہ تہ پیدائے مولا د چا نہ

نسب د نشتہ سره لہ فرده

نہ څوک پیدا دے لہ ذات پاکہ

کفوت د نشتہ سره لہ احده

کہ عبادت کړی عابدان ټول

حاجت د نشتہ سره لہ عبده

ستړے ستو مانہ نہ ئے هیچا نہ

ظلم د نشتہ سره لہ وحده

فانی فنا کہ باقی بقا کہ

حال مے صفا کہ سره لہ وجده

مہ پریږده حیران غلام پریشان

پہ لوئ خسران کښں سره لہ صلده

**************

---

اے د مغفرت طالبہ غواړه مغفرت لما

اے د معصیت کاسبہ غواړه عافیت لما

اے ظلومہ اے جهولہ اے هلوعہ

تہ فقیر محتاج ئے مدام غواړه عنایت لما

تہ ئے پہ دنیا دنیا کړه ستا د پاره جوړه ما

ځے بہ ترے آخر نادانہ غواړه آخرت لما

اے مغروره ولے شوے مسرور پہ دا اندک لذت

دا لذت فانی دے باقی تل غواړه جنت لما

اے غلامہ تا د غلامئ نامہ گټلے ده

تہ د غلامئ آزادئ وه غواړه اجرت لما

**************

---

اے پرے پیکر ځما تا غوخ کړ ه د زړه سر ځما

تا غوخ کړ ه د زړه سر ځما اے پرے پیکر ځما

اے بوړا دلبر ځما ولے شوے پہ څہ جدا لما

ولے شوے پہ څہ جدا لما اے بوړا دلبر ځما

شرین شهد و شکر ځما ستا لبان اؤ اخمری

ستا لبان اؤ اخمری شرین شهد و شکر ځما

تخت وتاج افسرځما ستا حیات دے بودو باش

ستا حیات دے بودوباش تخت وتاج افسر ځما

سلطنت کشور ځما بے لتا دے بے اثر

بے لتا دے بے اثر سلطنت کشور ځما

یا رب حیات پرورځما دهرچا حیات لتا نہ دے

دهرچا حیات لتا نہ دے یا رب حیات پرورځما

دا شمس و قمر ځما بے لتا انور نہ دے

بے لتا انور نہ دے دا شمس و قمر ځما

دزړه حوض کوثرځما تقسیم پہ خاص وعاموکړه

تقسیم پہ خاص وعامو کړه دزړه حوض کوثرځما

یا کبیر اکبر ځما د غلام کبائر عفوه کړه

د غلام کبائر عفوه کړه یا کبیر اکبر ځما

*************

---

یا رب زړه م روښانہ کړه پہ نور د معرفت سره

رسان م تر خپل ځانہ کړه پہ نور د شریعت سره

آمان م تن وجان د میزان لہ تیزه نار کړے

محفوظ م د شیطان نہ کړه پہ نور د یقینیت سره

خپل فضل کرم مے هم نصیب پہ لوئ کرم کړه تہ

ثقیل مے نیک میزان کہ پہ نور د هدایت سره

نا تام غلام تمام کړه تمام پرے خپل انعام کړه

روان مے رت جانانہ کہ پہ نور د احدیت سره

څه څما خوبان دیدن به کړو صبا روز حشر

رضا یو په قضا مولا د شی رضا روز حشر

نه به وایو زیاتے لګ عمر شو پاتے

الغرض نیته شوه د دیدن څما روز حشر

دا عمر د غم څمونړ تیر به شی آخر په مونړ

غواړو به بدل د غم د ځائے رضا روز حشر

جاړو به حضرت سخه څو به ذوالقوت سخه

راکړه مغفرت د معصیت خدا روز حشر

هغه کړه له ما سره چه وی لائق لتا سره

مغفرت نصیب کړے د غلام آقا روز حشر

****************

---

غم به مے د زړه نه چرے کم نشی

څو چه تن څما له تن بے دم نشی

کم به څه رنګ غم د هغه یار شی

بند چه په ایراد ئے هر یو کار شی

هر چه کړی ایراد هغه ابار شی

غیر له ایرادے غیر ابار شی

فعال لما یرید خطاب دے

کون د کونین تر ے سر شاب دے

غم د ضلالت هدایت ما سره -
مل دے چه به څه کړی دے لما سره

خوف د خاتمے په سر لوئ بار لرم
ځه چه نفس کافر غونډے ټګ یار لرم

سیر فنائ بے له تقوی نشی
بے له شرع تامه به تقوی نشی

تامه به فنا شی هغه دم لتا
نفس چه کناره شی په کوم دم لتا

دا خو بدایت دے ولایت سره
سیر نفسی ئے کار دے نهایت لره

سیر بقائ ده نفس اسلام دے
دا بقائ سیر د نفس اسلام دے

نفس چه له دنیا نه په رفتار شی
خود به رسیده تر خپل دلدار شی

جوړه دا دنیا ده دین داریٔ لره
ځائے د دل داریٔ نیکو کاریٔ لره

خدایا دا غافل غلام بیدار کړے
یائے د سید پور غونډے دلدار کړے

## ***** وصل *****

مرحبا راشہ بیا گویا شہ اے پیک پیامہ ځما شرین کلامہ

دناز خندہ لرہ پہ وینا شہ اے نظم نظامہ ځما شرین کلامہ

ستا طلبدار یمہ ستا خریدار یمہ

پہ زړہ بیمار یمہ پہ انتظار یمہ

رویرو کینہ مخامخ وکړہ قصہ تمامہ ځما شرین کلامہ

جبہ شوہ بندہ ځما نکړی چلندہ ځما

روان شہ هر بند ځما خراب شہ ژوند ځما

یو ځلہ راشہ بیا گویا شہ اے فصیح کلامہ ځما شرین کلامہ

کہ پہ محشر شی نما دیدار لتا دلربا

حال بہ ځما شی خندا زړہ بہ صفاشی ځما

ستا د نعمت خوانچہ بہ تیر ځما تر کامہ ځما شرین کلامہ

خاص د غفران پہ دولت هم دعرفان پہ نعمت

نصیب ځما کړہ وحدت ادا لہ ما کړہ شکرت

پہ روئ صفا دمصطفی ځما رب السلامہ ځما شرین کلامہ

زیات شہ ویال د مولا غواړی ویصال دبوړا

سر د رفیق اعلے رفیقت غواړی مولا

دا نا تمامہ غلامی کړہ د غلام تمامہ ځما شرین کلامہ

سید پوری پیر لرم زړګے منیر لرم

سُر هندی شیر لرم دا لوئ جاګیر لرم

نقشبندی نسبت قبول کړه د غریب غلامہ ځما شرین کلامہ

## ***** احتیا ط *****

بے غوري د عا لمانو ویران کړے داجهان دے

بے عدلئ د حا کمانو فاسد کړے دا زمان دے

واکداری هم د زنانو تالان کړے خان مان دے

نر بہ څہ د حیا کارکړی چہ د ځځو چا کران دے

خان بہ څہ فتح دجنګ کړی چہ نوکرترے بےفرمان دے

څہ بہ رعب د ملا وی چہ شاګرد تہ منت بان دے

څہ بہ زور دحکومت وی چہ رعیت تر پہ لرزان دے

څہ دوستی دہ د دوستانو دوست لدوستہ نہ خسران دے

څہ یاری دہ د دوستا نو یار لہ یارہ بے آمان دے

تش د خولے چاپلوسی کہ جهان ګورہ ځان پہ ځان دے

کہ دنیا وی هر څہ پیردی بے دنیا سړے حیران دے

مروت نشتہ پہ هیچا کښ علامہ د ضعف ایمان دے

دیانت اؤ مروت دواړہ علامہ د قوی ایمان دے

خدائ دخیرکړی ددارینو ډیر ګړنګ ملا حیران دے

***************

دیدار د نګار که دو بار شی ځما
قرارزړه بیمار به دوبار شی ځما
شرین اؤ لذیذ وایه لفظ الله
ا لله ا کبر یاد ګفتار شی ځما
جانان مے خو ګیګی چشمان مے جړیګی
شفیق عبدالحق د غم خوار شی ځما
له خود نه بے خود عبدالحق چه وئل
رفیق د شفیق نیک آثار شی ځما
نا کام د غلام نا تمام شه تمام
حا فظ و نا صر د غفار شی ځما

***** عشق دوام *****

خدایا وچ نکړے ځما د ستر ګو نم
نمیده دے مداما وی ستا په غم
سره مضغه ځما د زړه دے سره سکروټه
که تودیګے رانزدے شه یو قدم
زړه دوات لرم میداد په کښ د خون
مخ کاغذ هر یو مژګان لکه قلم
هر زمان چه مے رایاد شی ستا جمال
نوشته د کړم اؤصاف په دے قلم

ځما خیال دے ستا جمال سره ګویا

ګذاره کړم د بیا ن په زیر و بم

د حیران غونډے حیرت کښ سر ګردان یم

چه له چا نه شم جدا چا سره ځم

سود اؤ زیان راته د ځان نشی معلوم

حسان نه لرم د بیش سره له کم

هر یو کار مے حواله دے ستا په حول

نه پو هیګم لیکن والله واعلم

عبدالحق لکه بوړا غونډے جدا شه

یعنی عمر د بوړا وی مختتم

د هر چا په زړه به یو یو غم تیریګی

د غلام په زړه بلیګی اور د غم

******* جدائ د پیر *******

ځه له هر یو غمه نه یے غم شمه

پیره چه مغمومه ستا په غم شمه

غم ځما وه طاق پلے دو تاق شه

پیخ چه ز غریب بوړا فراق شه

ته ئے معنوی بوړا معنی مراد

عبد حق لفظی بوړا لقبی تنساد

ستا په شفقت پیره ځه مشکور یمه
ستا په خدمت پیره ځه مسرور یمه

ستا خدمت له ذکره فکره بل نه دے
دا خو د دنیا د پاره چل نه دے

دلته کامیابیګی یو دانا بشر
نه هر یو جاهل طالب د سیم و زر

کټ بنګاد پیوند شی د کټ ګر سخه
سیم و زر پیوند شی د زرګر سخه

کار د آهن کیدے شی د هنګر سخه
کار د ترکاڼئ کیدے شی د دوز ګر سخه

ته جدا کړه لار اول د هر دوکان
پس په ارادے صادقے شه روان

آخرا به ورسے ته کار ته
یعنی د تو حید ګل ګلزار ته

غواړے له مولا صراط مستقیم
تله راتله کوے په غیر مستقیم

حال دے ستا محلوله د بدعت سره
قال دے ستا منقوله د سنت سره

ستا لفظی رفتار دے لا مکان تہ

ستا قلبی رفتار دے خود امکان تہ

دا دو رنگی پریږده یک رنگی کوه

دا دو بینی پریږده یک بینی کوه

کار د منافق وی دو رنگئ سره

کار د هر صادق وی یک رنگئ سره

دا دروغ آمیزه شیخی مہ کوه

دا خبیث آمیزه پاکی مہ کوه

گران کہ وائ کار د توحید گران دے

وائ کہ آسان ورتہ آسان دے

امر د آمر وجود اصلی گنڑل

دا ممکن وجود وجود ظلی گنڑل

کار دے د توحید ختم لہ دے سره

خدائ د کڑی غلام ختم لہ دے سره

****** از جفائے اهل دین *****

ہیر یاران دوستان وو ہیر خویشان ځما

عنقریب اکثر وه جان پہچان ځما

غالبا پہ کار پہ وقت د کار نہ شول

کمترا لہ کار نہ مے بیکار نہ شول

مرگ خو یو مرگ وی لہ سر تیر شی
مرگ چہ هره ورځ وی کلہ هیر شی
دا د بے ننگئ درخواست غلام کوی
مصر بہ پہ سید خیرالانام کوی

*****************

ځہ لہ فضلہ ستا پہ تا شیدا یمہ
مال و سر پہ تا لتا فدا یمہ
تا د هدایت ایشارت کړے دے
نفس غوندے گمراه د پہ لار کړے دے
تا د دلبرے پہ کرشمے سره
تا د مرحمت پہ خاص نغمے سره
هر یو روح مرحوم د طالب کړے دے
عشق د تو حید پہ غالب شوے دے
بار کړه د غلام د غلامئ شجر
توش کړه پہ هر چا باندے د دے ثمر

********مغفرت********

بے لہ فضلہ ستا بہ شی حاصل کلہ
دا مقام ځما بہ شی واصل کلہ

ستا په لوئ کرم به دا دولت کریم
ما ته شی حاصل دغه نعمت عظیم

هم په روئ صفا د مصطفی سره
مل کړه دا غلام رفیق اعلی سره

هیڅ به نشی کم د مرحمت ځنی
نه بشی څه زیات د شان شوکت ځنی

عفوه دا غریب کړه په عفوت سره
یا ئے معذب کړے په قربت سره

ډیر عذاب لائق دے حال ځما سره
مغفرت ښائیګی مولا تا سره

خدایا داننده ئے په هر کار ځما
نشته بے له تا نه بل غفار ځما

***************

پریږده خودی خپله چه خدائ بیا مومے
څو چه ته خودی کړے خدائ به نه مومے

یعنی شه تابع د امر حق مدام
مړده مخالف له شریعت نه ګام

تل متابعت د شریعت کوه
تله په طریقت خو د سنت کوه

ځان ساته مدام له ضلالته نه
یعنی د شرکت اؤ د بدعته نه
هله به عابد د عابدانو شے
هم به سر غندل د زاهدانو شے
هله به نامزد شے د غلام سره
هله به نامزد شے خدمت تام سره

****************

خدایا خپل خدمت له ما تمام کړے
مل م د سید علیه السلام کړے
حشر مے صبا کړے د رسول سره
یعنی د خیرالامم مقبول سره
نصیب مے کړه دیدار صبا د چار یار
هم د اهل بیتو اصحاب کبار
بیا رضا شه ته مولا له ما نه
عفوه کړه عبدالحق سره له ما نه
دا په خاطر پاك د مجتبی نبی
بیا په والضحی د مرتضی نبی
عفوه کړه غلام په کرم خپل سره
پیر د سید پوری په رحم خپل سره

واوره له رومی قصه کوی څه رنګ
له هیرے جدائے ګیله کوی څه رنګ
روح انسانی دے په غوغا سره
روح عرفانی دے په وینا سره
دے قصه د فراق اؤ د کثرت کوی
دے له جدائے نه شکایت کوی
څه نور د حبیب وم ذ حبیب سره
نور د جبیب یو وه له مجیب سره
ما ته معلوم بوئ د جدائے نه وه
ما ته معلوم کار د رسوائے نه وه
څه نور د مولا وم خلق دے نور ځما
بے له خدایه ټول دے نور معمور ځما
الغیاث په دے چه څه جدا شومه
له هیرے جدائے ځنے رسوا شومه
څه چه د رواج ممکن په میان کښ
جوړه واسطه شم دے میدان کښ
هره بلا شوه په سر انبار ځما
ځکه شه بے کاره هر یو کار ځما

دا لہ خہ چہ بند شوم پہ ناسوت کښ

ځہ وم باشندہ پہ ملکوت کښ

جسم لاهوتی شہ اوس لا کور ځما

پاتے شہ مسکن اباد لہ نور ځما

ځہ وم نورانی باشندہ نور سرہ

اوس شومہ تور ټپ کور مے شہ تور سرہ

هیخ نیم خبر چہ خہ بہ پیخ شی

بخت ودہ ځما بہ کلہ ویخ شی

جوړہ واسطہ یمہ انسان لرہ

بیا یم د انسان رب المنان لرہ

نور کہ شہ غالب ځما غالب بہ شم

وړونکے بہ د ځان اؤ د قالب بہ شم

ظلم کہ غالب شی د قالب پہ ما

الامان دا نور بہ کړی سالب ځما

څوک بہ غم خوری ځما د غم کوي

څوک بہ تیماری د دے ماتم کوی

سیر د غضبی روح د سجین خاک تہ

سیر د روح مرحوم بہ وی افلاک تہ

څه خبر نیم چه کوم دے روح څما
څه رنګ به زړګے شی پر فروح څما

څکه حکایت د شکایت کوم
نسبت نصیب ته خپل دا ندامت کوم

واوره له رومی څه رنګ قصه کوی
له هیرے جدائے څه رنګ کیله کوی

دا خو د جلال جمال تاثیر دے
روز ازل لیک مو دا تقدیر دے

جنسیت په کار دے د جړا لره
هم نفس په کار دے د رنړا لره

<u>بیت فارسی</u>

<u>سینه خواهم شرح شرح از فراق</u>

<u>تا بګو یئم شرح درد اشتیاق</u>

غواړمه سینه زخمی فراق سره
بیان چه د درد وکړم اشتیاق سره

راز خو د بلبل وی د بلبل سره
چاک زړه د بلبل وی خار د ګل سره

فرحه پس له جرحه نه لذت کوی
بے له جرحه فرحه څه زینت کوی

چا چہ تموزت د هاړ لیدلے وی
کار د پہ شکال ئے پسندلے وی

خوک چہ خبر نہ وی لہ فراق نہ
دے کلہ یریګی لہ خراق نہ

خوک چہ خبر نہ وی لہ میثاق نہ
دے کلہ پروا کړی لہ نفاق نہ

خوک چہ خبر نہ وی لہ عرفان نہ
دے کلہ ګروهیګی لہ شیطان نہ

خوک چہ خبر نہ وی لہ جمال نہ
دے کلہ یریګی لہ زوال نہ

خوک چہ مجتنب لہ نواهی نشی
کار بہ ئے آخر د تبا هی نشی

خوک چہ تسلیم کړی امر د امیر
شی بہ منور لکہ بدر منیر

ما کړه مقسومہ تسلیم پہ قسم درے
یعنی عادتی شوقی خوفی شو درے

خوک چہ عبادت کړی پہ عادت سره
هیخ عزت ئے نوی رب العزت سره

څوک چې عبادت کړی محبت سره
دے بشی محبوب د رب خلقت سره

څوک چې عبادت کوی له خوفه نه
رعب به ئے په مخلوق وی تل له خوفه نه

هر یو جنس له جنس سره الفت کوی
غیر جنس له غیر ځنے نفرت کوی

کار وی د بلبل مدام د باغ سره
کار د ډیران ښائ زاغ مردار سره

راز خو د سینے وی له سینے سره
خوږ خو د اینے له اینے سره

زخم د سینے چرته ظاهر نه وی
بے طبیبه بل چاته باهر نه وی

دے زخم له خائ یو حازق طبیب
راز لره په کار وی یو صادق حبیب

هر چاته به راز د زړګی راز نشی
هر چاته بیان د راز فراز نشی

سر چې مجاوز شی د اثنین ته
فاش به هغه راز شی د داربین ته

زړه خما په غم سره زرے زرے

غواړمه سینه په غم پرے پرے

بیتً فارسی

سینه خواهم شرح شرح از فراق

تا بگو ئیم شرح درد اشتیاق

من بهر جمیعتی تالان شدم

جفت خوشحالان و بدحالان شدم

ما له هر ټولی سره جړه لیدی

نیک وبد ملګری مے لیدلی دی

یعنی د هرچا سره مل شوے یم

حال د نیک وبد سره ضم شوے یم

ځه له هر قبضے نه قبضه شوے یم

ځه له هر بسطے نه بسطه شوے یم

ما تاثیر د هر مجلس لیدلے دے

ما ثمر د هر شجر خوړه لیدے

ځه له پاک نه پاک راغلے وم

وطن د ناپاکئ کښں ناپاک شوے یم

غواړمه پاکی جاړم هر چا سره

لاړمه مل شوے د هر چا سره

خپل د غم شریک موندلے نہ دے ما

غم د خپل همدم جړه لے نہ دے ما

څہ رنگ بہ گذران پہ دے هجران کوم

آخرا طلب بہ د جانان کوم

لوئے واړه ژړیگی پہ ژړا څما

غرونہ را نړیگی پہ ژړا څما

څہ چہ ذ درمو د باغہ شم جدا

نر خځے ژړیگی پہ فریاد څما

هر یو روح ژړا د جدائے کوی

نیک اؤ بد غوغا د رسوائے کوی

روح حیوانی نباتی روح جماد

نہ دی پہ ښادئ سره درے واړه ښاد

هر یو گرفتار دے د هجران پہ غم

مخ د هر یو لوند دے د چشمان پہ نم

هر خوک چہ د اصل خپل نہ شی جدا

بیا طالب د وصل شی روز و شبا

یعنی راغے روح جسم ناسوت تہ

ښائ چہ روان شی ملکوت تہ

ودے کړی سفر اطیعوا لله سره
مل د شی هردم رسول الله سره

ترک دے د ظلی جسم لازم په ده
خیال دے د اصلی وجود لازم په ده

اصل د ده نور وه بیا د نور شی
له دے وجوده تور نه د مستور شی

جسم خاکی آخرا به خاک شی
جسم پاکی آخرا به پاک شی

نور بشی هله نور سره شی هم نفس
دلته چه خوک ترکه کړی دا بولهوس

خیال د خپل مولا د زړه په سر لره
خوف رجا ترے دواړه برابر لره

خوف ئے جلالت دے ترے یریګه تل
رجا ئے جمالت دے پرے نازیګه تل

بیت فارسي

هر کسے از ظن خود شد یار من
از اندرون نجست اسرار من

هر له خپل ګمان شه خود یار ځما
نه د لټوی د زړه اسرار ځما

یعنی څه درد مند یمه په درد دیار
عالم کله تمیز کړه له اغیار
څه مدام طلب د ویصالت کوم
څه له دے هجران نه شکایت کوم

## ******طرز مقصود******

لا اله الا الله لری نکات
چه مقصود دے د حیات
د ذاتی صفاتو دا اول صفت دے
په وقوف دے د تمام امکان حیات
مظهرئ له د توحید ممکن حیات شه
بے توحیده حیات څه یعنی ممات
په شفقت اؤ په رحمت د پاك رحیم
بخشنده شه ماوراؤ ته حیات
ثمره د بندګئ خو زندګی ده
شجره ئے سلسله ده د حیات
جز اول ایمان د ایمان نفی اثبات
طور اؤ طرز ئے د احمد نبی طاعات
محمد رسول الله جزثانی دے
منتها دے د مقصود منزل حیات

د سنت پہ شاھراہ باندے روان شہ

چہ حاصل شی د مقصود کل ثمرات

داب دستور دھر مقصود جدا جداوی

د توحید دستور رسول پاک رسالات

بے رسولہ بہ مقصودتہ رسید نشی

بے توحیدہ فائدہ نہ لرئ حیات

معنی دا چہ لا الہ الا اللہ

لوئ مقصود دے پہ حق حیات

ایطاعت د محمد رسول اللہ

دغہ طرز دغہ دستور دے د حیات

غلامی خو غلامی د پاک رسول دہ

غلام ځکہ پہ سنت لری حیات

******************

---

امان آمین ئے تہ امین امین امین

رحمان رحیم ئے تہ امین امین امین

قدرت قدیم لرے عزت عظیم لرے

رحمت عمیم لرے قوت قویم لرے

قیوم قدیم ئے تہ امین امین امین

پہ غیب خبر لرے حکمت ھنر لرے

سمع بصر لرے قضا قدر لرے

علیم حلیم ئے تہ امین امین امین

رب المنان ئے تہ رحیم رحمان ئے تہ

عظیم الشان ئے تہ صاحب د توان ئے تہ

سلام سلیم ئے تہ امین امین امین

مولا څما ئے تہ آقا څما ئے تہ

رب العلی ئے تہ هادی هدا ئے تہ

عظیم کریم ئے تہ امین امین امین

سازنده کار تہ ئے بخشنده بار تہ ئے

رحمت نثار تہ ئے مولا ستار تہ ئے

حیات دویم ئے تہ امین امین امین

***************

---

هر هغہ چہ دی لہ خدایہ ما سوا

پہ خدائ غواړم د هغو څنے فنا

لہ هغو برهم اخوالو امان غواړم

چہ لہ امر نهی نہ کاندی جدا

لہ هغہ یار دل ازار نہ څہ ویزاریم

چہ بے زار ئے لہ ازار خوخ پہ رضا

لہ هغہ یاروفادار نہ طمع دار یم
چہ تمیز کاندی روا لہ ناروا

د هغہ خاکی مزاجو خاک پا یم
چہ تسلیم کړی رضا خپلہ پہ قضا

لہ هغہ فاسد قلوبو امان غواړم
چہ باطن لری سیاہ ظاهر صفا

لہ هغہ ګرګي خصال ګوشہ حال یم
چہ پہ غیبہ خون شامی کړی داشنا

پہ ظاهر کښں لکہ ګل غوندے خوشبووی
پہ باطن کښں لکہ پیاز غوندے عنقا

کہ غلام وی پہ رښتیا تجربہ کار
پہ لباس بہ غرہ نہ شی د هیچا

*****************

---

چہ د تورے دواړہ ستر ګے کړے نرے
بیا د تیزے د بڼړو کړے خنجرے

پہ دے ستر ګو د زړګے راسخہ یوړہ
دے بڼړو د کړے څما ګردے سورے

چہ لہ خیالہ قدم واخلے حیرانیګم
چہ مینا ئے کہ ئے زرقا د درے

ستا د سترګو په ګولو سورے سورے یم

ریز مریز د کړم د کسو په چړے

غلام وائ سید پوری بابا له څمه

ترینه غواړم د خوبانو سرورے

**************

---

په درے قسمه ده تقوی یو اعلی بله ادنا

احتجاب په حسناتو له جمله ؤ ناروا

دا تقوی به مسمی شی خود په اسم دادنا

احتجاب چه په حق کاندی شی له خلقو نه جدا

دا تقوی ده دوئم قسمه مسمی ده په اعلی

درئم قسم احتجاب دے په شهود د پاک مولا

دا هم غایت تقوی ده د سلوک د انتها

تل په نقش لری خیال طالبان د ابتدا

چه پوخته نقش د نګارشی کړی په ذکر اکتفا

چه محکم شی ذکر فکر ذاکر ذکر شی فنا

حقیقت د ذکر دا دے هم له خدائ سره بقا

چه مُنزل مقام تمام شی فقط ذات سره سودا

له عروجه لذت اخلی امان غواړی له نزلا

خیال مدام لره په حال چه نزول دے که اعلی

لہ نزولہ امان غواړه ‎ ‎ پہ ھادی رب العلی

خیال پہ نورد شریعت ‎ ‎ کړه چہ خلاص شے لہ بلا

تصور جمال د پیر ‎ ‎ هم علاج دے هم دوا

استغفار درود بسیار ‎ ‎ توجہ د راه نما

د نزول اسباب هغہ دی ‎ ‎ چہ لہ شرع وی سوا

دعروج اسباب کل واړه ‎ ‎ تلہ پہ سنت الهدای

شاکر اوسہ پہ عروج ‎ ‎ تل صابر شہ پہ قضا

پہ تقدیر بہ شی دریخ ‎ ‎ هر چہ وی مقرر ستا

پہ تدبیر بہ بدل نشی ‎ ‎ د تقدیر خکلی د چا

حفاظت لہ د ایمان ‎ ‎ درے امور دی لازما

اول دے تسلیم د امر ‎ ‎ اجتناب لہ منهیا

د ازل پہ قضا قدر ‎ ‎ هر مومن بہ وی رضا

چہ دا دریواړه تسلیم کړی ‎ ‎ نا میده شی مسلما

خدایا عفوه پہ کرم کړے ‎ ‎ د غلام واړه خطا

***************

---

خدائ د گل د محمد گلاب گلزار کړی

پے دماغ د بوراگانو عطر دار کړی

د درو طوطیان پہ راولے سیل سیل

پہ هر شاخ ئے د گلبن گښ پہ چغار کړی

د صحرا بلبلان راولے دے باغ تہ
هر آواز ئے لکہ ساز نغمگین دار کڑی

د هوشیار مالیارپہ لاس فواره ورکڑے
لہ فیضان ئے گل گلبن دواڑه آب دارکڑی

خرانئ گلئ سیلئ نہ امان غواڑم
پہ تیز خار ئے خاریده لاس داغیارکڑی

دا همیش گلاب شاداب لره وهابہ
باریده پہ رحمیده ابر بهار کڑی

مفرح د زړه قوی عرق گلاب
د سیدپور پہ عرق ساز باندے تیارکڑی

پہ شیشہ قلبی کښ بند د نقشبند کړه
نوش د جان ئے د غفلت پہ سخت بیمارکڑی

شربت نوش دسیدپوری غلام علیل
پہ عفوت سره دے عفوه رب غفارکڑی

****** نا صح ******

دا پہ کټ غریب پروت بیمار د چادے
دا د سرطرف تہ ناست طبیب د چادے

چہ علاج د عاشقے کولے نشی
دا کم عقلہ ناخوانده طبیب د چادے

منع کولے چہ خپل یار لہ اغیار نشی

دا بے پیرہ بے تدبیر رقیب د چادے

چہ خوبان ئے د امکان منت باری کړی

دا بے مثلہ بے پروا حبیب د چادے

چہ ئے بے لہ عجزہ بل څہ منظورنہ دی

دا غالب غنی توانا مجیب د چادے

چہ ھرچاتہ د حبل الورید نزدیدے

دا بے چون اؤ بیچگون قریب د چادے

تارد زلف ئے کمند دھر دلبند دی

دا کمال جمال جلال عجیب د چادے

دا بادشاہ مالك الملك خالق الخلق دے

د ھر کیفہ نگاہ بان رقیب د چادے

چہ ئے وعظ ھیځ اثر پہ غلام نکړی

بے تاثیر پہ ممبر ناست خطیب د چادے

****** در حق بدعت رواج ******

ستا پہ سترگوباندے راغے خیځاب ولے

لکہ مارشوے پہ سم لارپیچ وتاب ولے

د اسلام منہاج وھاج د کړہ متروک

شوے روان دبیابان پہ خراب ولے

مدام دنفس شیطان په رضا درومے
روان نشوے په سنت اؤ کتاب ولے
پیشمانی چه پس له مرگه فائده نکړی
تائب نشوے نن په در د تواب ولے
په حلالو په حرامو حصار نه ئے
بے پروا شوے د سریع الحساب ولے
شب اؤ روزچه دغفلت په خوب اوده ئے
نه یریګے د شدید العذاب ولے
هر یو تارچه ستا د زلفو نغمه کاندی
مطرب ایخے په زانو دے رباب ولے
چه رنړا ئے په نورد مخ زمین آسمان دے
دلبر ایخے په سپین مخ دے نقاب ولے
چه حلال دکړه غلام په تیغ د عشق
بیا د وسپاره د نفس په قصاب ولے

******** نقشه ئے سلسله *********

اعوذبالله له شیطان نه چه رجیم دے
بسم الله چه رحمان دے هم رحیم دے
الحمد ثنا خدائ لره ښایئګی
په حضرت درود له خدایا نازلیګی

پہ خاطر د ذات وحید رب الکریمہ

پہ خاطر د ذات مجید رب الرحیمہ

پہ خاطر د صمدیت رب الصمدہ

پہ خاطر د احدیت رب الاحدہ

محبت معرفت راکړہ رضا خپلہ

ذکر فکر مے روزی کړہ تل تر تلہ

پہ تقوی مے قوت ناکہ ابتدا کړے

پہ رضا مے طاقت ناکہ انتھا کړے

پہ خاطر د خواجہ سیدالکونین

پہ خاطر د خواجہ زینت الدارین

چہ رحمت للعا لمین حبیب دے ستا

هم راحت للعا شقین طبیب دے ستا

پہ خاطر د شاہ ابابکر صدیق

پہ فیضان لرہ باطن ځما رفیق

پہ خاطر د شاہ خواجہ فارسی سلمان

خاتمہ کړہ ځما ختم پہ ایمان

پہ حرمت دبوالقاسم خواجہ انور

پہ خاطرهم د خواجہ امام جعفر

په خاطر د بایزید خواجه بسطام
په خاطر د ابوالحسن خواجه نیک نام

په خاطر د خواجه علی فارمد
اندرون مے کړه له نوره برآمد

په خاطر د خواجه یوسف همدانی
په خاطر د عبدالخالق غجدوانی

په خاطر د فغنوی خواجه محمود
په عرفان سره کړه یخ څما وجود

په خاطر د خواجه عارف ریوګر
په عرفان سره کړه یخ څما ځیګر

په خاطر د فغنوی خواجه محمود
خدایا ته مے ئے مطلب عین مقصود

د علی رامیتنی خواجه په مخ
زړه څما کړه د وحدت په شربت یخ

د تجرید تفرید زنجیر په ګام څماکړه
د توحید شیروشکر په کام څماکړه

په خاطر د سماسی بابا کریمه
ما رها کړه د شیطان خبیث غلیمه

پہ خاطرد خواجہ سید امیر کلال
تل صفا لرہ ځما دغریب حال

پہ خاطرهم د خواجہ نقش بندانو
شاہ شاہ بهاؤالدین پیر د پیرانو

پہ خاطر هم د خواجہ علاؤالدین
اندرون بیرون ځما کہ عنبرین

پہ خاطرد چرخی خواجہ یعقوب
پہ غفران کړہ عفوہ کل ځما ذنوب

پہ حرمت دعبیداللہ صاحب احرار
حقائق د علم ماتہ کړہ اظهار

پہ روئ پاک هم دخواجہ محمد زاهد
پہ خاطرهم دمحمد درویش عابد

پہ حرمت دامکنگی خواجہ رویدار
اندرون مے لہ غفلت نہ کړہ بیدار

پہ خاطر هم د خواجہ باقی‌باالله
ځہ لہ نفس پناہ غواړم پہ الله

پہ حرمت هم د امام ربانی
مجدد نقشبندی الف ثانی

منور زړګے ځما کړه په خپل نور
په خاطرد خواجہ آدم بنور
په خاطرد خواجہ شیخ سعدی بلغار
په خاطرهم د خواجہ یحیی بیدار
په خاطرهم د خواجہ عبدالشکور
په خاطرد عبدالرزاق خواجہ مسرور
په طفیل هم د خواجہ محمد صفا
په قضا قدر کړه ما عاجز رضا
په خاطرپاک د خواجہ فقیر محمد
په محشر ځما شفیع کړه محمد
په حرمت دشمس الدین خواجہ کشمیر
مجدد نقشبندی سید پوری پیر
خدایا ته ځما مقصود شے د دارینو
خدایا ته ځما بهبود شے د کونینو
خدایا ته په روئ د ټولو خواجہ ګانو
دا غلام غریب حساب کړه له نیکانو
خدایا ته په مخ د ټولو اولیانو
ګناه ګار غریب حساب کړه له عرفانو

خدایا تہ پہ مخ د ټولو انبیاءؑو
کړہ داخل غلام حقیر پہ اصفیاءؑو

خدایا پاکہ د خدائ د برکتہ
کړہ خبر ګړنګ ملا لہ معرفتہ

******** قل هوالله احد ********

پہ یو آن پہ شی فنا هزار آن د دے دنیا
خندیدہ دوستان ددھر پہ جړا بہ شی جدا
د ګل مخ برګ زلفان پہ خزان بشی افتا
پہ سنګ ریز بہ ریزمریزشی جام دجم جهان نما
یو تر بلہ بہ پیوند شی شکستہ جام مرایا
شی بہ ستا بدن دسرور بوسیدہ چوب دصحرا
نہ بہ بیا پہ خیال روان شی پہ قدم لکہ مینا
نہ بہ پس دمرګہ راشی ستا پہ لاس کښ راهنما
هدایت بہ اثر نکړی پہ لحد کښ زاهدا
کہ ثمر د اثر غواړے شتہ شجر کښ د احیا
یو حبہ بہ حاصل نشی د اثمر بعد الموتا
جواب ورکہ نن هغوتہ چہ یے تہ ئے مشغولا
بے د فضلہ د رحمان پہ هیخ مشہ مسرورا
پرے تناب کړہ دامید لہ حیات طویلہ

سرنشیب کړه خپل ګریوان ته　　کړه په ذکر مشغولا

دعبرت په سترګو ګوره　　هر اشیا ته د مولا

دا چه ته په سترګو وینے　　پیدا نه دی باطله

په تسبیح سره کړه یاد　　ذات باری د پاك الله

ساکت اوسه په ظاهرکښ　　ذاکر اوسه باطنا

دا رویش دے د مردانو　　د مردانو د خدا

په هیڅ رنګ نه مونده کیګی　　بے له فضله د مولا

اولیا دی په رحمت کښ　　دی له فضله انبیاؑ

مومنان دی عدالت کښ　　کافران دی مغضویا

فاسقان منافقان　　دی له کفره محسویا

مراتب خو دا خلوردی　　ته ئے د کوم رتبے آقا

ته میزان کړه دخپل ځان　　په کوم اسم ئے مسمی

په میزان دنیک عمل کښ　　ثقیلا ئے که حنیفا

چه له ندا اجتناب کړی　　نیک میزان شی ثقیله

چه سریع الحساب شته دے　　ته شوے ولے بے پروا

له دے فرشه نه تر عرشه　　ټول علم دے نو پیدا

د خلقت په نظاره کښ　　یو علم دے کبیرا

د انسان په نوعیت کښ　　بل علم دے صغیرا

دا تمام علم کبیر　　دے صغیر کښ دفینا

صغیرهم شته په کبیرکښ کبیر خود فی الصغیرا

تل په بذر کښ شجر سر سبزه وی بالقوا

بذر هم لری شجر کښ تربیت خپل مهیا

شجری قد د انسان له بذر نطفے پیدا

نطفه هم ده له انسانه په خلقت کښ هویدا

شِجر بذر یو اثر دے په قدرت د قدیرا

اثارکل واړه عارض دی عارضات وی تل فنا

امکانی تمام وجود من وجود الواحبا

په وجود کښ دے ممکن واجبی وجود اقوا

امکانی وجود فنا که واجبی وجود بقا

فعل ایراد که خپل په ابرار فعل د مولا

حواله کړه په قوی خپل همه واړه قوا

احدیت تعین اولی دے وحدیت دے ثانیا

وحدیت سره کثرت دے ترے موجود شو ممکنا

د توحید مقام دے دا چه کړے ځان جهان فنا

شته د شرح په دریاب د توحید ګوهر یکتا

په صله عرفان وصول که له کامله راه نما

نور د دین په جلوه راغے ټول جهان به کړی رڼړا

د قلبی مشرق نه خیجی فرش وعرش به کړی ضیا

سید پوری دلبارتہ لاړشہ　　　　کہ د عشق لرے سودا

د سید پور ولی مظھردے　　　　څہ غلام څہ ئے غوغا

****************

بے لہ یارہ د اغیار خریدار نیم

بے دیدارہ د روئے بار منت بار نیم

هر سوال چہ کړم دزړہ پہ عرفات

بے لتا د بل مطلب طلب دار نیم

ستا دمخ کعبے تہ تل دے څما مخ

بے لتا د بیت الله طلب دار نیم

تہ څما ئے مقتدا څہ مقتدی یم

بے لتا د بل امام تابع دار نیم

اندرون مے د بیلتون پہ لمبو سوزی

د مطبخ غوندے یو دم بر انګار نیم

یو قطرہ اشک روان د خپل ګریوان

ورکونکے پہ شربت د دینار نیم

لذایذ د دواړو کونو غلام وائ

قبلونکے پہ لمحہ د دیدار نیم

## ******** دقیق پرده انور *******

پہ جبال د بال د راشی لیغان سید پوری

پہ شبو شبو د راشی باران سید پوری

پہ ساحل ددریا ناست یم تشنہ لب دآب پہ خواست یم

پہ چپو چپو د راشی موجان سید پوری

حاسدانو پہ لہزان کہم دغہ سپو ہیر پریشان کہم

پہ حملو حملو دراشی شیران سید پوری

اندرون مے شو زبون پہ زخمونو د بیلتون

پہ مزو مزو دراشی خوبان سید پوری

د فیضان پہ انتظار یم لہ عرفان نہ طمع داریم

پہ ھفتو ھفتو دمراشی پیران سید پوری

خہ موسم د نوبھار دے ھر یوگل پرے آب داردے

پہ نغمو نغمو د راشی بلبلان سید پوری

توجہ لرہ تیار دے شمس الدین ولی بیداردے

پہ دلو دلو د راشی مریدان سید پوری

پہ زلت د شی ذلیل ھر کم ذات چغل رذیل

پہ خوارو خوارو د خوار شی بدخواھان سید پوری

د توحید شراب جو شیگی بے حومان د زہہ کیگی

پہ تپو تپو د راشی مئے خواران سید پوری

زیړ ګلونه د ګلزار شګفته کړه رب غفار

په جلو جلو د راشی طوطیان سید پوری

چه له هر وطن روان شی پرے زنده مرده دلان شی

په زارو زارو د راشی فیض خواهان سید پوری

خاص دلبار ته د مزارهم په امید د شاه نګارهم

په دمو دمو د راشی غلامان سید پوری

******** مشاهده ********

پریږده حال غواړه مقام د تلوین وشلوه دام

ننداړچی شه دخپل ځان چه افتاد ئے که قیام

قدم واخله له ناسوته کیږده پاس د عرش په بام

دا همه علم امکان په توحید سره کړه رام

هم په شپګ واړه اطرافه ایحاطه کړه انعدام

عرش اؤ فرش اثرد فضل اثر نه لری دوام

فعل فاعل صفت موصوف یو تر بل وی انضمام

اسم هم له مسمی نه نه جدا وی نه یک فام

مرایا چه شی مخلوق ترے ظاهر شی ذوالاکرام

مرایا چه شی خالق شی ظاهر علم تمام

دا هم قرب فرائض دے نوافل دے د بل نام

د واجب قرب وجوبی دے د مخلوق سره تمام

دممکن قرب امکانی دے　　د مولا سره دوام

پہ شهود حضور کیدے شی　　معرفت د رب غلام

د جملوؤ ایطا عاتو　　دے لائق رب الاکرام

غیر الله لہ پہ طاعت کښں　　حصہ نشتہ یو چدام

د حقیقی مالك پہ ملك کښں　　دے تمام عالم غلام

*****************

---

یا بلبل د صبح دم دے چہ چغیگی

یا عاشق دے چہ د یار پہ غم جهڕیگی

یا مژگان ځما د یار دی خونریزان

یا نیشتر دے چہ پہ زړونو کښں خخیگی

یا دے پاڼره د خزان نہ پہ لرزان

یا ځما جیگر دے ستا پہ خوف رپیگی

یا کباب دے پہ سیخکښں پہ اور نیسلے

یا دے زړه چہ ستا د مخ پہ اور چخیگی

یا تنور د نان بایانو دے تل گرم

یا سینہ د عشق پہ اورسره گرمیگی

یا خو دیگ دے د هوټل پہ مطبخ سور

یا درون دے د عاشق پہ غم جو شیگی

یا دریاب دے چہ روان دے بے پایانہ
یا دی اوښکے چہ لہ صدق نہ بھیگی

یا قرآن دے چہ جامع د کل علوم دے
یا ستا مخ دے چہ ترے هر فن حاصلیگی

ستا د مخ دمطالعہ طالب مولا دے
مبتدی پہ دے کتاب منتهی کیگی

مبتدی د سید پوری چہ خدائ رضاشی
ابتدا کښ ئے انتها رامعلومیگی

یا سړے شہ یا خاروے شہ اے غلامہ
آخر بین اؤ آخور بین کلہ غلطیگی

*******************

---

یا د یار چشمان سرے پہ تاب د نار دے
یا گل شوی پہ سپین مخ باندے گل نار دے

یا د خیال چہ ستا د خال پہ بام نشین دے
یا بلبل دے چغندہ ناست پہ چغار دے

یا عاشق دے چہ فریاد کوی لہ عشقہ
یا خو شور بیمار خانہ کښ د بیمار دے

یا دے عشق چہ د عاشق دین و ایمان دے
یا دے روح چہ پہ زندہ هر یو جاندار دے

غلام وائ چہ لہ عشقہ خبر نہ وی
کہ مسلم وی خو پہ غاړہ ئے زینار دے

***************

راغے سپین جمال پلاس تورہ مصرے
عنقریب بہ ئے جدا کړم ککرے

چہ لدے لہ مخہ بل یو مخ تہ گوری
د ھغے خلقو بہ پرے کاندی مرے

تور مژگان لکہ ترکان خنجر پہ لاس
کړے ځما د زړہ پلوټ بھادرے

سور پیطوان ئے لکہ نمر مخ ئے اسمان دے
سرہ لبان ئے شفقی سرے کنارے

پہ حملو حملو ئے زړہ راسخہ یوړہ
لنډئ زنہ لکہ جام د زمرے

لہ دھشتہ ورتہ نیغ کتلے نشم
چہ راواړہ وی دوہ سترگے خمارے

کہ ئے یو ځلہ پہ ما علاقہ راغلہ
ځہ بہ پریږدم علاقے د ششدرے

ھغہ نور چہ د ایمان عرفان یقین دے
شہ فدا ځما د یار ترے دلدارے

د سید پور ولی دربار نیسہ غلامہ
کہ مطلب لرے د شاہ شہر یارے

## *****چهار بیتہ دربیان لطائف جاری*****

د گمرها نو رهنما پیر دستہ گیر دے ځما

روشن ضمیر ځما

د نفس شیطان پہ جیل کښ عقل گرفتار دے ځما

عمر پہ دار دے ځما

پہ راہ گذر د نیک عمل کښ انحصار دے ځما

ہیر اقتصار دے ځما

مرشده خلاص کړه پہ ارشاد بدن اسیر ځما

روشن ضمیر ځما

ہیر پہ اذکار د لطائفو کښ اسرار دے

فیض د غفار دے

پہ لطیفہ د قلبْ کښ نور د رب ستاردے

ذکر اظهار دے

مشاهده شو رنگا رنگ انوار منیر ځما

روشن ضمیر ځما

پہ لطیفہ روحی کښ نور دعرش عظیم دے

فکر حمیم دے

هم په سری کښې له کرسیے نه نور قویم دے

فیضان عمیم دے

رحیمه عفوه په غفران کړه کل تقصیر څما

روشن ضمیر څما

په لطیفه خفی کښې هم قلم تحریر کوی

د نور تقریر کوی

لوح محفوظ هم په اخفا کښې دا تدبیر کوی

د نور تقدیر کوی

استفاده د فیض معلومه کړه تقریر څما

روشن ضمیر څما

پنج لطائف سره له حاله مجلا شولو

ډیر معلا شولو

په هرسالک باندے دارنګه برملا شولو

خه مصفے شولو

شپګمه شته دے لطیفه د نفس شریر څما

روشن ضمیر څما

پس له اجزا د لطائف ذکر سلطان وینمه

مهر رحمان وینمه

اول مقام له مقاماتو د بیان وینمه

عین عیان وینمہ

قلب فنا قلب بقا دے زړه اکثیر ځما

روشن ضمیر ځما

بل سیر نفس چہ هر خطر پکښ بیسیار دے

فیض خوشگوار دے

حقت کعبہ چہ د رحمت پہ لوئ بهار دے

سیر پہ رفتار دے

حقت قرآن دے سراسر بشیر نذیر ځما

روشن ضمیر ځما

حقت صلوات چہ مغزیات د عبادات دے

ذی درجات دے

نهم مقام حقت دعوت صاحب سوغات دے

پیر عنایات دے

حقت شهود دے د جانان مشک و عنبیر ځما

روشن ضمیر ځما

حقت حیرت دے نارینہ شہ چہ حیران نشے

هم سرگردان نشے

محمدی تہ کړه میلان چہ روگردان نشے

سترے ستومان نشے

هم حقیقت احمدی دے داروګیر ځما

روشن ضمیر ځما

په معرفت کښې د صفاتو خوش تاثیر دے

عجب تدبیر دے

د تجلیا تو رنګا رنګ پکښې تظهیر دے

عروج منیر دے

پنځ لسم ګوره معرفت د ذات قدیر ځما

روشن ضمیر ځما

مقامات خلاص شو باقی پاتے چهار سیر شولو

په نیک خبر شولو

سیر ناسوت هم ملکوت بل جبروت شولو

رابع لاهوت شولو

وائ غلام دادے فرمان د شاه کشمیر ځما

روشن ضمیر ځما

***** نکا ئب دهر *****

که خبر په زیر و زور د دے احقر شی

د همه واړه روزګار به لاس په سر شی

که مکتوب په لوح محفوظ ویصال ځما وی

ستا جفا به په وفا باندے ګذر شی

نہ مے یرہ نہ مے خوف نہ مے گیلہ شتہ
عاقبت بہ د تقدیر ثمر بھر شی

تاؤ د ھاړ سیزلے گل کہ وی ہیر مړا وی
پہ شبنم د برسات بہ تازہ تر شی

کہ نظر شاہ شاھان پہ رحمت وکړی
دا کلی واړہ غمونہ بہ اختر شی

د غرض دانہ مے پټہ پہ ضمیر دہ
پس لہ عمرہ نہ باید چہ شین شجر شی

تل تازہ دے وی غنچہ ځما د حال
پہ خاطر د محمد د نور انور شی

لہ آفاتو بلیاتو پہ آمان شہ
ہیر د فضل د غنی قادر اکبر شی

د مولا حول و قوت مے تکیا گاہ دے
د غلامِ نفس و شیطان بہ در پہ در شی

**************

---

شکر دے خدایا چہ موسم د بھار بیا راغے
خزان شړلے طوطی نن پہ بھار بیا راغے

چہ د غفلت ظالم پہ مصر د غفلت وھلے وو
ھغہ طوطی د ھدایت پہ چغار بیا راغے

نہ مے یرہ نہ مے خوف نہ مے گیلہ شتہ
عاقبت بہ د تقدیر ثمر بھر شی

تاؤ د ھاړ سیزلے گل کہ وی ہیر مړا وی
پہ شبنم د برسات بہ تازہ تر شی

کہ نظر شاہ شاھان پہ رحمت وکړی
دا کلی واړہ غمونہ بہ اختر شی

د غرض دانہ مے پټہ پہ ضمیر دہ
پس لہ عمرہ نہ باید چہ شین شجر شی

تل تازہ دے وی غنچہ ځما د حال
پہ خاطر د محمد د نور انور شی

لہ آفاتو بلیاتو پہ آمان شہ
ہیر د فضل د غنی قادر اکبر شی

د مولا حول و قوت مے تکیا گاہ دے
د غلامِ نفس و شیطان بہ در پہ در شی

**************

---

شکر دے خدایا چہ موسم د بھار بیا راغے
خزان شہړلے طوطی نن پہ بھار بیا راغے

چہ د غفلت ظالم پہ مصر د غفلت وھلے وو
ھغہ طوطی د ھدایت پہ چغار بیا راغے

چہ د انوارو اقالیم ئے پہ لاس راغلہ ھمہ
تخت د دعوت تہ ھغہ نیک شھریار بیا راغے

وطن دغیب ئے کہ خالی ملک دشھودتہ راغے
ھجران ځپلے مسافر پہ قرار بیا راغے

چہ پہ طلب کښں دلیلی مجنون حیرت زدہ شہ
شہ لیونے ھغہ سرتور پردہ دار بیا راغے

محمدی دیدارمجنون چہ پس لہ مرگہ بیا موند
د عاشقے ھغہ اخلاص پہ اظھار بیا راغے

چہ حقیقت احمدی کړل پہ اسلام مشرف
لیلی مجنون پہ صداقت پہ اقرار بیا راغے

چہ پہ صفاتو د بدرے وو زړہ بیللے ملوک
پہ ملک د چین ھغہ مخلص د دیدار بیا راغے

کمال د عشق چہ فرھاد اؤ شرینے سخہ وو
تبر پہ لاس ھغہ فرھاد پہ گذار بیا راغے

جمال اؤ حسن چہ پہ ذات کښں گل اندامے لرہ
کند پوش فقیر پسے بھرام تغمدار بیا راغے

د ناسوتی زندانہ خلاص شہ ملکوت تہ درومہ
پسے منزل د جبروت پہ رفتار بیا راغے.

چہ دلاهوت منزل وصول شی وصل راشی هلہ

د لامکان پہ کیفیت اقتصار بیا راغے

هاهوت باهوت چہ دریابونہ دوحدت دی صنم

دحقیقت لامبو وهونکے شاه سوار بیا راغے

دخدائ رضا وحدت ترے غواړی د ګړنګو ملا

د کشمیری سیدپوری پیر صلہ دار بیا راغے

بازاردحسن د سیدپور ګرم پہ هر طرف دے

ګړنګ ملا دے هغہ جمال خریدار بیا راغے

د مجدد سید پوری پیر حلقہ بګوش غلامہ

دریاب د فیض شمس الدین پہ زخار بیا راغے

**************

---

سید پور چہ منظور پہ حضور د غفور دے

فیضان د منان ئے روان پہ هر لور دے

فیضان رحمانی دے عرفان صمدانی

رضوان یزدانی دے احسان سبحانی

دے پیر دستګیر خوش ضمیر خور دے

فیضان د منان ئے روان پہ هر لور دے

مریدان مخلصان چہ سرتور ځی دلبارتہ

فیضان دے جریان توجہ کړی دیدار تہ

صفا مصفا ترے خمیر ہک د نور دے

فیضان د منان ئے روان پہ ہر لور دے

بندیوان پہ زندان د عالم ناسوت یم

طمع دار طلبگار د عالم ملکوت یم

کرہ عروج د افلاکو عطا رب صبور دے

فیضان د منان ئے روان پہ ہر لور دے

جبروت کبن قوت د فنا فی‌الصفات دے

لاھوت کبن عشق چہ فنا ھم فی‌الذات دے

پہ سیر الا اللہ باللہ فی‌اللہ مسرور دے

فیضان د منان ئے روان پہ ہر لور دے

کرہ سکر وحدت یے محنت رانصیب

لہ ریا مے رھا کرے درون ھم طیب

گنڑی جام د مدام مے لہ خبث نسکور دے

فیضان د منان ئے روان پہ ہر لور دے

غلام بد نظام درون رنگ یے رنگ کرہ

صیقل معطل ترینہ زنگ دھر رنگ کرہ

توحید د وحید پیرہ غواڑی معذور دے

فیضان د منان ئے روان پہ ہر لور دے

بے نوا چرے رسوا پہ محشر نہ شم

ہیر قوت لرے نصرت لوئ د جلال دے

نور د دین پہ برج دقلب شہ ځما ګرم

بے سحابہ د مشرق سید پوری حال دے

مهر وماه د سید پوری فلک صفا دے

د سحاب حجاب ئے نشتہ ټول کمال دے

د قلبی مشرق نہ خیجی پہ منزل زر

پہ مغرب د لامکان کښں ئے ادخال دے

دا غلام صلوات سلام پہ حضرت وائ

شفاعت بہ کړی ځما صاحب اقبال دے

****************

---

یم منت بار د نګار وکړه لما دلبری

ځہ خواروزار ګناه ګار د ستادلباراکبري

رضاپہ ازار د یعقوب شہ رب ستاردعیوب

د زلیخا انتظار کړے پہ یعقوب دست بري

هغہ یوسف کنعانی اخلی مالک کاروانی

تقدیر کوی دارومدار د زلیخا خون خواري

لری کامل عنایت د عاشقے کرامت

مجنون پہ غاړه زینار بیا موند جنت زرزري

پیر د کشمیرځما        ملکا کشمیر ځما

شته د سیدپور په دیار د هدایت خبري

روان د ده په فرمان        بیا مومی لاردعرفان

درون به ستا که بیدار نقش بندی هنري

صاحب دنور کمالی        هم د جلال جمالی

د خلیفه وی په کار جلال جمال هم سري

کمالی نور وی کمتر        موندلے نشی اکثر

کړی بے تکلیفه رفتار لکه باد صر صري

دواړه زلفان جلالی        پریشان په مخ جمالی

کمال شه ستا گل و نگار داغ د غلام جگري

******* عار و کناره کشی *******

یاره مکوه له ما نه انکشاف

گذشته جفا د ستا وی درمعاف

مناسب چه پلو بیرته کړے له مخه

بے حجابه را څرگند کړے جمال صاف

د پدول پدولی مه آوره پس له دینه

خپل ځما تر میانه مه پریرده گذاف

که یو ځل د دواړه زلفے په لاس راکړے

بیا به نه وی ځما ستا تر مینځ خلاف

کہ تہ یو ځلہ نظر ځما پہ لور کړے
ځہ بہ پریږدم د امکان واړه اکناف

شکرانہ بہ ئے تمام عالم خلق کړم
کہ مکشوف دے کہ حجاب لہ مخ کشاف

قد قامت دے د کعبے غوندے گنبد دے
عاشقان لکہ حاجیان ترے کړی طواف

ستا پہ یاد ځما د زړه قندیل رنړا دے
خدائے د دفع کثافت کړه د کثاف

اور د عشق سینہ دوکان سکاره د فکر
فیض بنیئ حدید د زړه لہ پرے شفاف

غلام وائ زه پہ لاس سید پور لہ ځم
چہ کره کوټہ جدا کاندی صراف

## ****** مسلہ نزول حال ******

پہ درے قسمہ نزول وائ سالکان
رحمتی عدلی غضبی دے الامان

چہ د زړه تر سره خال شی پہ نزول
عنایت رحم بے سیار وی د رحمان

چہ لہ زړه نہ حال نامہ وتہ نزول شی
د گناه عدالت کاندی رب منان

لہ نامہ نہ چہ پہ ښکتہ روانیگی
د غضب دے علامت غواړم امان

تصور جمال د پیر توبہ تائب شہ
خیال د نور پہ شریعت کہ دا زمان

تر هغے استغفار پہ تکرار وایہ
چہ دے حال عروج پزیر شی خرامان

احتیاط بویہ چہ غرق دے بیړہ نشی
هر گرداب د طریقت دے ها یئلان

غلام وائ حوالہ مے حال پہ خدائ دے
تکیا گاہ مے د سید پور شاہ مردان

******* در حق مدعی *******

دعوہ دار ئے د اسلام گواہ د نشتہ
امید وار ئے د جنت تقوی د نشتہ

بے گواہ بہ څہ ثبوت کړے محکمہ کښں
د قاضی مخے لہ ځے پرواہ د نشتہ

د اسلام دعوہ پینځ گواهان غواړی
شوے تارک د پنج بینا مدعا د نشتہ

تہ چہ تل بے فرمانی فسق و فجور کړے
لعنتی د خپل ممات سودا د نشتہ

د مجنون غوندے دنیا درتہ لیلی شوہ
دین اسلام تہ د کړه شا یقضا د نشتہ

و بازار وتہ روان سودا د نشتہ
مختورن ئے د سودا بها د نشتہ

اے پخپل وجود ظالمہ ځان د غرق کړه
بے نوا شوے پہ دنیا عقبا د نشتہ

ټول کارونہ د دوزخ کړے جنت غواړے
سفلوی شوے یو ذره علیا د نشتہ

اے غلامہ دا همہ احوال ستا جال دے
بندی وان شوے پہ زنجیر رها د نشتہ

****************

---

مهلکات مے غلبہ شو سرگردان یم
سعادات مے مغلوبہ شو حق حیران یم

اندرون مے تر قیده پہ تصور شہ
گوشت اؤ پوشت هډونہ سوے پہ نصران یم

مرصل لہ مناسب چہ علاج وکړی
علیل شوے پہ علت د ډیر هجران یم

هر طالب تہ مسیحی هم خپل مطلوب دے
پہ دلبار د غمخوار ځکہ پہ گریان یم

نیک نظر د مرحمت پہ مجرم وکړه
وداعہ بے نوا نکړی خیر خواهان یم
غلام طوق د غلامے پہ غاړه کړ دے
مکوه جوروستم جبر ناتوان یم
*******************

د مجنون زړه بہ لہ سوزه قلار نشی
د اور سوے خاخ بہ بیا سبزه زار نشی
هغہ تن چہ مسافر زیر تراب شی
کہ نزدے وی خو بہ بیا پہ دیدار نشی
د غضب ګلئ چہ کوم فصل تباه کړی
پہ ژړا د زمین دار بہ پایئدار نشی
هغہ یار چہ مرګی پہ لمسہ بیل شی
موا صل بہ د ناصح پہ کردار نشی
کوم ګلاب چہ سینہ چاک پہ ازغی تیر شی
هم پیوند بہ پہ باران د بهار نشی
چہ سرسام ئے د مزغو پریردی پخیکی
پہ علاج د جالینوس اثردار نشی
چہ موسم د بهار تیر شی خزان راشی
پہ هیڅ باغ کښ بہ بلبل پہ چغار نشی

هغه خوله چه آلوده په جام د یار وی
قند نابات به ئې انبار خوشگوار نشی

چه سینه کښې ئې د عشق سرود غنځیګی
هیڅ سکرود ته د زهره بګو ش دار نشی

هغه زړه چه جادوګر په خیال د یار شی
د هاروت ماروت جادو بئې په کار نشی

چه ټول ملک په سپینو واورو کافوری شی
سفیده ګل به شنې غوټې د کوکنار نشی

د مرګی سیلاب چه کوم ګلونه یو سی
شنه طوطیان به هلته بیا په چغار نشی

هغه خاخ چه د مرګی په تبر پرے شی
په میوه به دوباره سر انبار نشی

چه ګلئ پرے د اجل په غضب وشی
تازه تر به دوباره هیڅ ګلزار نشی

چه د غم چینجے لګیا په کوم زړګی شی
په خندا خندا به بیا په ابشار نشی

که مخلوق د کل جهان راته خندیګی
سوے زړه به مے د درده قلار نشی

مسافر د تورو خاورو کہ نزدے وی
پہ خندا خندا بہ بیا ھم کنار نشی

کہ یو گز یا نیم پہ خاورو کښی فنا شی
ھیخ دیدار بہ ئے د مور اؤ د پلار نشی

ھر وزیر چہ شی معزول لہ وزارتہ
دوبارہ بہ ھم نشین د شاہ سوار نشی

چہ پہ قندو پہ ناباتو عادت واخلی
اندرون بہ ئے چراتیس خوشگوار نشی

کہ تکیے پہ ځائے قلم ورکړے شا خیل تہ
ھم خرمن بہ پہ قلم پارہ پار نشی

کا بلے واخلی دبیراو قلم بہ پریږدی
نازک تن بہ د کاغذ نقوش دار نشی

چہ کاغذ اؤ خرمن دواړہ ورتہ یو دی
ھیخ مظلوم بہ عدل خواہ پہ دلبار نشی

پنبہ زار درتہ چاپیر آتش بازی کړی
لو غړن بہ ټول وطن پہ انگار نشی

د غلام چہ نا چیدہ ناساز ویئل دی
معلو میگی چہ پہ ستا اعتبار نشی

***************

اے ځما د زړه مرهم د سترګو توره
اندرون مے شہ کباب اے چشم نوره
پہ فراق مے خراقہ د زړه پرده شوه
ټول لړمون مے شہ ستی اے بصرنوره
لیونی غوندے مے سر پہ صحرا کیخود
د ققنس غوندے ایره شوم د خپل اوره
د بکری پہ شان مے هراندام کبش اور دے
شراره پہ پنډ دهجر کړی لہ شوره
چہ آواز د بیلتون واورم ټول رپیګم
رنړا ورځ شوه پہ وحشت راباندے توره
ولی خدائ مے نګهبان حافظ مطلق دے
کنړی خلاص شم د ظالم د ډیره زوره
را رسیګہ پہ جلدئ وقت د امداد دے
اے ځما مرشد کامل شاه سید پوره
غلام ځکہ لا نعم نکړی دلبرتہ
چہ ګانړه ئے پرے سرمال کړه پہ دستوره

****************

څوک به ما غونډے طالب خسته حیران وی
چه ئے روک د خپل طلب نام و نشان وی
څوک به ما غونډے بے دل په دنیا پائ
چه آګاه نه په خپل سود اؤ نه په زیان وی
څوک به ما غونډے په ړوانده په لار سم کړے
چه وتلی ئے د حق دواړه چشمان وی
څوک به ما غونډے کاهل چست وچالاکه
چه شنه کاڼری د کوه سار ترے په لرزان وی
څوک به ما غونډے بے دل په زړه محکم که
چه لویدونکے لکه پاڼره د خزان وی
څوک به ما غونډے مستان په هونس پیدا که
چه مدام په غم خانه کښ ئے مکان وی
څوک به ما غونډے کاڼره په غګ راستون که
چه مدام د شقاوت په لار روان وی
لار مونډے د هدایت په لوئ کرم شی
غم ئے نشته چه پرے فضل د منان وی
که دا نور عالم په راز اسرار پوهیګی
اکتفا د حُما هم په خپل عنوان وی

غلام وائ ځما دا تسلی بس دے
چہ غم خوارمے د سیدپورلوئ پهلوان وی

***** جهاد *****

اے د جهاد شوقینہ شابہ ناراستی مکوه
حور وغلمان دے امیدوار دی پیشمانی مکوه

اے داسلام غمخوره پورتہ کہ نعره د تکبیر
د خدائ پہ لارے ځان قربان کہ بے مانی مکوه

چہ شرین روح د صبا درومی کام ناکام لہ تنہ
نن ئے پہ خپلہ کہ رخصت بے فرمانی مکوه

جاهدو وگوره قرآن کښې موتوا قبل الموت
پہ دے فانی حیات قلیل جاویدانی مکوه

چہ پہ درگاه د لم یزل د فریحین شو نصیب
ځوانہ لہ دے نعمتہ لوئ سرگردانی مکوه

پہ دے ممات ظاهری واخلہ حیات ابدی
بل د اسلام ننگ وناموس دے هزمانی مکوه

دا نصاره اؤ یهودیان دی قدیمی دشمنان
پہ دشمنانو د الله مهربانی مکوه

ئے مسافر د لوئ سفر نادانہ شوے غافلہ
د گناه بار لرے انبار شاده مانی مکوه

جهاد اکبر خلاف د نفس دے چہ رضا تے نشے
پہ شرع دروِمہ ټول کارونہ نفسانی مکوه

غلام احقرغواړی اکثر لقا د شاه عالم
شفیع څمونږ رسول اکرم دے حیرانی مکوه

د سیدپوری ګلزاره راوړه د توحید ګلونہ
هار د سینے کړه ذکر فکر نقصانی مکوه

نقش الله کړه برابر د زړه پہ سر اندرون
د خیال پہ جبہ کړه تکرار ګفت لسانی مکوه

کہ نکتہ چین غزلے وائ د ګړنګو ملا
لہ عمران شا نہ پہ بل چا نکتہ دانی مکوه

******* بیان روان حال *******

---

اندرون مے غلغلے د اور جوړیګی
سرے لمبے د ککرے نہ مے تیریګی

کہ سیمون جیحون دجلہ وربانده سم کہ
دا لا څہ پہ رود نیل هم نہ مړیګی

اندرون مے د تنور پہ شان شہ ګرم
نان بابان د کرامت بہ کښ روتیګی

هر اندام مے د سکروټو ډیری کښ دے
بار څما تہ کړی خبر ک پہ تودیګی

مناسب ولہ داھومرہ جفا نہ وہ

چہ خہ کاندی ھغہ دہ لرہ خایئگی

دا باقی عالم چہ گورم برقرار دے

رنج و تاب پہ ما غریب باندے تیریگی

د ققنس غوندے مے اور لہ ځان نہ واغښت

ستا د حسن نغمگین سرود غنگیگی

ټول وجود مے شہ ایرہ وباد وچت کړہ

خدای خبر دے چہ پہ کوم طرف غورزیگی

کہ نظر د ویصالت کړی وار ئے دا دے

د تعجیل پہ ځائے تعطیل نہ منظوریگی

خدایا دا بخشش عظیم ځما نصیب کړے

ھیخ شوکت د سلطنت دے نہ کمیگی

دا غلام د غلامئ پہ ځائے منظورکړہ

ستا لہ پارہ د سید پور فریادی کیگی

*****ان النفس لا مارت بالسوء الا ما رحمہ ربی*****

غلیم مے نفس شیطان دے تکیاداردرب منان یم

وقت د امتحان دے پیرہ لاس راکړہ حیران یم

نفس دے پہ اوہ قسمہ امارہ لوامہ ملھمہ

مطمئنہ راضیہ مرضیہ کامل خوان یم

بے لہ خدایہ ھول تورے تیرے مقام اغیار دے

بند پہ بند د نفس امارہ کبنں بندیوان یمہ

بے لہ پنج اسبابہ د هجران سفر کیدے نشی

راہ رو بارگیر توخہ رفیق صلاح جویان یمہ

راہ رو مرشد بارگیر همت توخہ تقوا رفیق

پیر با ئے نوم د خدائے وصلہ دہ پھلوان یمہ

نفس امارہ چہ پہ بدئ سرہ فرمان کوی

مقام ئے شی اغیار ماسوا الله کبنں سرگردان یمہ

نفس چہ ملامت پہ مخ دخدائ شی پہ هردم قدم

مقام ئے شی انوار سائل پہ در کبنں د سبحان یمہ

نفس ملھمہ تہ چہ الھام وشی لہ خدایہ نہ

مقام ئے شی ابرار طالب درحم د رحمان یمہ

نفس مطمئنہ چہ آرام بیا مومی پہ یاد د خدائے

مقام ئے شی کمال غلام د شاہ کاملان یمہ

نفس راضیہ چہ پہ هر حال راضی لہ خدایہ شی

مقام ئے د وصال زرے زرے لہ دے هجران یمہ

نفس مرضیہ شی چہ الله لہ چا راضی شی

مقام ئے تجلا شی د افعالو ځہ ناتوان یمہ

نفس کامله چه شی کامل له غنی خدایه نه
مقام ئے تجلا شی د صفاتو په ارمان یمه

ځائے د تجلو زړه د سالک دے یے له ذاته نه
منع تجلا ئے ذاتیه یے تاب وتوان یمه

تام بشی سلوک خو تمامی د تجلو نشی
ارحم الراحمین دلیل نسونکے په قرآن یمه

هغه قرب وبعد چه مابین د مولا و عبد دے
نه لری ظاهر صورت لیدونکے د برهان یمه

خدائ له بعد وقرب ظاهری نه مبرا ګنړم
هم له شش جهته منزه دے خوش بیان یمه

بعد مناسب ته حجاب وائ سالکان د حق
نه چه په ظاهر صورت لیدونکے فی العیان یمه

خیر دتوحیدغواړم په دلبارد سید پوری سخی
آواز نقشبندی کړم په شاهی کوسه روان یمه

پاتے مولائ استاذی شوه حکیمی له ما
ملا وم د ګړنګو اوس غلام د شاه عرفان یمه

*****************

---

زمانه په اسلام کفر سره ګرځی
فرق د تورو سپینو کله نابینا کا

کہ د اور جامے راواغوندے دلبرہ

پہ نظر ځما جلوہ لکہ دیبا کا

ستا پہ عشق کښں ځوک بد راباندے وائ

ځہ گمان کړم چہ ھمہ ځما ثنا کا

عاشقی ننگ و ناموس دی سرہ لرے

پہ روښانہ ورځ بہ ځرنگہ ځوک غلا کا

ھمیشہ بہ پہ جھان کښں وی سرخ رویہ

چہ ثنا لکہ بلبل د خپل آشنا کا

اوبہ سترگو لرہ لاړے اور د زړہ شو

ځوک بہ ځرنگہ ژوندون پہ دے مزاج کا

دا ځما اوښکے پیدا د زړہ پہ نم شوے

لکہ اور چہ لہ کبابہ نم اخراج کا

کہ ځوک وائ اوښیار کوم دے وایا دادے

چہ بے خدایہ نورہ مینہ پہ چا نہ کا

ھر چہ ستا کوسہ ماوا کا ځائے بر شی ترافلاکا

ځان ایلہ ورتہ بادشاہ شی چہ ئے ستا د در گدا کا

ترخے اوښکے د عاشق آب ونمک دے

خدائ دے نہ کا ځوک بے آب و بے نمکا

## ********* پہ فراق د پیرصاحب *********

پاتے دا دنیا دہ آخر پاتے د هر چا بہ شی

دیدارد سیدپوری نگاردوبار کلہ ځما بہ شی

تلونکے دا دنیا دہ پہ منزل منزل رفتار کوی

دا خواگہ دوستان چہ جدائے سرہ جدا بہ شی

از برائے زوالجلال راوښایہ زیبا جمال

بلبل حاجی کویاری برگلت گوها بہ شی

مخ چہ پہ نقاب کړہ سیدپوری کشمیری پیرځما

سترگے د حاجی کویاری سرے ستا پہ جړابہ شی

بیا بہ دا حاجی کویاری ناز پہ کوم نازبین کوی

لاړشہ قدردان سیدپوری کلہ بیا را بہ شی

بیا بہ استقبال تہ د کویار حاجی د چا درومی

پیر سیدپوری چہ شہ رخصت کلہ نما بہ شی

پاتے مریدان شو یتیمان خاورے پہ سر لیونی

پہ غم سوے سینہ حاجی صاحب آخر فنا بہ شی

بیا پہ کنډو د گابرے نور د دین جلوہ نشی

کور د کویاری حاجی پہ نور کلہ رڼرا بہ شی

خدایہ دا رنگین بیعت ځما د پیر رنگین لرے

رنگسازد دین یحیی حاجی ثانی اسرارملا بہ شی

دا وطن د عشق په عشق رنګین دے خدائ د رنګ لری

قربان له عاشقانو ستا غلام ګړنګ ملا به شی

****************

له خناسه بد خواصه امان غواړم

هم د نفس د سرکشئ نه امان غواړم

دا پناه اؤ دا امان مے په مولا دے

د زواله د ایمان نه امان غواړم

دا مقصود اؤ دا بهبود دا مے غرض دے

په ارمان ارمان کښ څه د جهان لاړم

پس له مرګه به مرقوم سجل څما شی

په ارمان ارمان کښ څه د جهان لاړم

چه جناب سیدپوری په سفر تل دے

څه به نوره څه وفا د دوران غواړم

ګل بلبل واړه فنا شو باغ خالی دے

څه لا ناست یم د بلبلو دوران غواړم

د سید پور شراب خانے ته یم راغلے

لبالب یاقوتو جام د ارغوان غواړم

حال احوال مے خاص په حول د خدائ سپارل دی

د زمری د مفسدانو امان غواړم

د غلام قلم د عشق مداد د اوښکو
ستا دمخ پہ کاغذ حرف د عرفان غواړم

****************

---

عجیبہ نقاش کړی نقش ستا د جبین
چہ پکښ دے خوند دقند او د ګبین

عجیبہ دائ دے خال پہ زنہ کیخود
د کوهی آب زمزم غوندے شرین

عجیبہ دائ دے سترګے تورے کړے
چہ پہ یو نظر مدهوش کړے ملک د چین

عجیبہ مادر پہ مهدکښ ئے ساتلے
چہ دے هر اندام دګل غوندے نازبین

عجیبہ استاد تعلیم دے درتہ کړے
چہ کړے هر الفاظ پہ خلہ کښ شکرین

عجیبہ درزی لباس درلہ جوړکړدے
سرہ لمن د شین فلک غوندے خمین

عجیبہ عاشق پہ تادے عاشق شوے
چہ نہ صبرشی لتا نہ هم نشین

عجیبہ ناز کرشمہ کړے پہ غریب
چہ بے هوش شی دیوانہ ګوئ غمګین

عجیبہ د راز اسرار خبرے کاندی

سید پوری کشمیری پیر وہ درازبین

نہ بہ بیا لکہ د سروے باغ تہ راشی

نہ بہ بیاتقسیم انوار کړی فا کیمین

نہ بہ بیا باران د فیض پہ شبو راشی

نہ بہ بیا خړوب شی زړونہ یا بسین

نہ بہ بیا گل گون رخسارد دہ خکارہ شی

نہ بہ بیا پہ دیدن سیر شی ناظرین

نہ بہ بیا د ناغہ دارو سترگو دید شی

نہ بہ بیا لہ نازہ پټ کړی نرگسین

نہ بہ بیا د سترگو رپ کښې نفس رام شی

نہ بہ بیا مژگان د دہ شی لشکرین

نہ بہ بیا نورانی شنہ و شنہ پیدا شی

نہ بہ بیا ابرو د دہ شی قوسین

نہ بہ بیا فلک آثار د دہ جبین شی

نہ بہ بیا دنور قطرہ شی عرقین

نہ بہ بیا مشک وکافور شی لاندے باندے

نہ بہ بیا لیندہ موئ شی دو رنگین

نہ بہ بیا عطرفشان گیرہ د دہ شی

نہ بہ بیا سنبل سیاہ شی اپلقین

نہ بہ بیا کافوری وتړی دستار

نہ بہ بیا حرکت د سر کړی نازنین

نہ بہ بیا پہ سرکہ تاج نورانی رنگی

نہ بہ بیا پہ تخت د عدل شی نشین

نہ بہ بیا رحمتی واغوندی قمیص

نہ بہ بیا خادر پہ سر کړی عطرین

نہ بہ بیا غنچہ صفت سرہ ویل واخلی

نہ بہ بیا لعل رنگ پہ خپو کاندی نعلین

نہ بہ بیا کرامتی عصا پہ لاس کړی

نہ بہ بیا پہ رفتار واخلی قدمین

نہ بہ بیا د آلائ پہ لور روان شی

نہ بہ بیا کہ استقبال مستقبلین

نہ بہ بیا د کویار کلے مشرف شی

نہ بہ بیا حاجی صاحب شی فرحین

نہ بہ بیا قطب حاجی میزبانی وکړی

نہ بہ بیا صاحب مہمان شی ملوین

نہ بہ بیا پاشتو ملا ترینہ زار زار شی
نہ بہ زړه شی پریشان پہ چا تسکین

نورانی د زمانے پاشتو ملایا
حال احوال د پیر صاحب کړه کل مبین

نہ بہ بیا یحیی بادشاه ترینہ قربان شی
نہ بہ بیا شی پہ خدمت کښ خادمین

نہ بہ بیا شی دیحیی بادشاه چشمانے
پہ دیدار دپیر صاجب مبر دین

نہ بہ بیا محمد ثانی گنتړی راشی
پہ گلزار د پیر صاحب بہ شی گل چین

نہ بہ بیا اسرارملا پہ اسرار گوری
فیضانہ د پیر فیضان پہ رنگ رنگین

نہ بہ بیا ټول مریدان آلائ وال راشی
توجہ د پیر صاحب تہ آدبین

نہ بہ بیا گړنگ ملا شی خبر دار
نہ بہ بیا د ده پہ لور شی ذاهبین

نہ بہ بیا گړنگ ملا کشمیر تہ لاړشی
نہ بہ بیا شی پہ سید پور کښ باکئین

نہ بہ بیا غلام غریب خوشحالی وکړی

نہ د خدائ کړی پس لہ دے نہ ضاحکین

ستا د غم اوښکے د تل څما پہ مخ وی

د شبنم غوندے پرتے وی دائمین

خدایہ دا سادہ روش څما د پیر

قاف تر قاف ئے بوئ خورکړے عنبرین

لوئ دولت دے پہ ظاهر نہ معلومیګی

بوئ دګل غوندے ګل پانړه کښ دفین

نورانی مشال دنور درون بلیګی

چہ پہ فضل د چا زړه شی ذاکرین

غلام وائ سید پوری نسبت کمال دے

شتہ پہ هر طرف د عشق کاملین

******* د پیر صاحب غم *******

دافلک ملک ګریان کوی من انتقال حضرتی

زخمی زمین سوزان کوی من انتقال حضرتی

یاکاشکے یالیتنی برداشت د دے غم ګران دے

ندا چہ نادیان کوی من انتقال حضرتی

غلبت علینا کدرتی و ردت علینا غفلتی

خبر چہ مخبران کوی من انتقال حضرتی

زلزال پہ زمین پریوت اسمان پہ ماتم کیوت

افسوز چہ سالکان کوی من انتقال حضرتی

کسرت جناح نجاحنا فسدت تفا حتہ راحنا

گفتہ گو چہ مریدان کوی من انتقال حضرتی

جالت علینا هجرکم طالت علینا فکر کم

فغان چہ یتیمان کوی من انتقال حضرتی

درون ځما غوسیگی بیرون ځما روتیگی

فریاد چہ طالبان کوی من انتقال حضرتی

سوزان کړی ناسوتیان پسے گریان کړی لاهوتیان پسے

اختیار چہ لامکان کوی من انتقال حضرتی

حیرت ملکوتیان کوی حسرت جبروتیان کوی

ایراد چہ رب منان کوی من انتقال حضرتی

یا الا هنا یا ربنا یا حیی یا قیومنا

فریاد درتہ جهان کوی من انتقال حضرتی

حیی بادشاہ کہ حیات دے لیکن ستا پہ غم ممات دے

پہ نغمو نغمو چہ فغان کوی من انتقال حضرتی

د حاجی صاحب ژوندون ستا پہ غم شولو زبون

خوناب د دہ چشمان کوی من انتقال حضرتی

پیر طریقت بود او شاہ ویلایت بود وو
جولان چہ دا دوران کوی من انتقال حضرتی

استاد چہ د گیروال وہ مستفید ستا پہ اقبال وہ
شب و روز مدام ارمان کوی من انتقال حضرتی

دگہرنگ ملا بے نوادے چہ لتا پیرہ جدا دے
رنگین ځکہ بیان کوی من انتقال حضرتی

*****************

---

ستا پہ لور گل شوے سترگے د گلاب دی
سرے ناغے پہ کښں لختی ہک د خوناب دی

ستا پہ لور ځما د سترگو دواړہ کسی
ڇسدونکے لکہ سترگے د حباب دی

ستا د مخ پہ تصور جیگر ځما
سیخ د خیال پہ سور انگار ایخے کباب دی

خدائ چہ اور د عاشقئ کړی پہ چا گرم
لہ فردوس ورتہ لذیذ ھر داغ و تاب دی

عاشقی ځرنگ بلا دہ نہ پوھیگم
کوم حکمت پہ کښں د پاك رب الارباب دی

ھر عاشق بہ د پتنگ غوندي جلیا وو
ولے پروت ستا د رخسار پہ اور نقاب دی

غلام وائ کہ نقاب لہ مخہ واخلی

کوم عاشق سخہ د شاہ د دیدن تاب دی

******************

چہ تمیز د بے تمیز درسخہ نشتہ

معلومیگی حبہ د یار درسخہ نشتہ

تا چہ خر ټهو پہ یو اخور لړی کړه

رسال دار ئے خو شاہ سوار درسخہ نشتہ

پہ لباس د دشمن دوست درسخہ پڑے شہ

التفات پہ حق د یار درسخہ نشتہ

گل بلبل باغ و باغوان ځما ستی شو

بے پروا ئے آب ونار درسخہ نشتہ

تہ ما درون زخمی کوے ظاهر مالش کړے

هیخ ځما د دوستئ کار درسخہ نشتہ

اے غلامہ ستا پہ دے انصاف حیران یم

جدائ دیار اغیار درسخہ نشتہ

## ****** رفتار عشق ******

چہ د عشق پہ لار روان شی عاشقان

کرامت د عاشقئ شی پہ عیان

په منزل ورسره سیر کولے نشی

په یو دوه قدم بیدم شی ناسوتیان

دا ناسوت د عاشقانو یو رفتار دے

لکه برق غوندے شی تیر له دے جهان

بل قدم ږدی په عالم دملکوت

چه په شوق د عاشقئ شی خرامان

چه په خیال کړی تصور ستا دجمال

بے اختیاره ستا په لورشی راه روان

درئم قدم د جبروت په بام بلند ږدی

چه په خیال کړی بادامی سیاه چشمان

د دلبر په نیک نظر چه نیک محظرشی

هغه خلق وی مکرم بلند بختان

څلورم قدم د عرش په زرین فرش ږدی

چه منظور شی په حضور د خپل جانان

دا طاقت د کرامت د عاشقئ دے

په قوت د صداقت دے پهلوان

په جنون د عاشقئ چه شی مجنون

درمانده شی د علاج ئے حکیمان

دار مدار ئي د امکان په علم نشی

عاشقان وی حواله په لامکان

دا غلامے سید پوری چه غلامی کړی

په غرض به ئے پوهیګی عاقلان

******** په فراق د پیر صاحب ********

ستا د دیدار یم ارمانی څما دلدار سید پوری

چشمان کړه پورته نورانی څما دلدار سید پوری

بیرون څما دے غوغائ درون څما دے سودائ

په فراق ستا یم لرزانی څما دلدار سید پوری

قلم قلم جیګر څما الم الم صدر څما

اهم اهم دے هجرانی څما دلدار سید پوری

په رنګ رنګین وے د مولا په غم غمګین وے دهرچا

سر مے له تادے قربانی څما دلدار سید پوری

روان سوی غریبان شو روان سوی یتیمان شو

ورکړه مدار په دروانی څما دلدار سید پوری

رئیس اولیا هین آپ انیس اتقیا هین آپ

عاشق درګاه یزدانی څما دلدار سید پوری

عافت الله بالتوحید حسدت الله بالتحمید

ذکرالله سبحانی څما دلدار سید پوری

روان کړه بیا د فیض سیلاب ګلاب دزړنو کـ سیراب

روان کړه حال نزولانی ځما دلدار سید پوری

جماد اول اوم تاریخ د چهار شنبے وه دا تاریخ

چربانګ شوے تہ جان فدانی ځما دلدار سید پوری

الله الله د وه رازګار مدام کړه تا ذکر اذکار

الله الله خاتمانی ځما دلدار سید پوری

افسوز دوبار بشی پیدا شرین بشر پہ دے دنیا

رحمت د فضل رحمانی ځما دلدار سید پوری

کہ نورددین شی را طالع جهان بہ ټول شی پرے لامع

وائ غلام ربانی ځما غم خوار سید پوری

****************

---

چہ نظر کړی پہ ګوشہ صنم د غم غم

ځکہ زیات شہ پہ ځما د سترګو نم نم

دا ګګے روزے دے قوس دی یا قزح دی

یاد تورے هیرانے شم پہ قلم لم

دا حیات مے د مماتہ بهترین دے

د رقیب سره چہ کړی مجلس پہ چم چم

مستغنی اؤ کبر جن همیشہ نہ وی

پہ عالم کبن د کرم ځہ پہ ګوتہ ګرم ګرم

گفتگو د راز اسرار جستجو نہ کړی
بے تفتیشہ دے حلال کړم پہ ستم تم
ترندہ لکہ آهو د صحرا مست ئے
لاندے کولے د خوک نشی پہ قدم دم
فریادی د سید پوری روئے بار پہ در ئم
تہ مے ولے زغلوے کوځہ پہ چم چم
کہ شړے اؤ کہ پریږدے غم خوار مے خدائ دے
رقیب تل کړی لکہ سپے راپسے هم هم
خاص سردار د اولیاو پیر خما دے
پہ قرآن پہ شریعت کړی رفتار تم تم
دبدبہ د سلطنت جشن شاهی دے
ځکہ لاس پہ خولہ ایږدم وایمہ کم کم
داننده تل د نادان پہ جال پوهیګی
غلام ځکہ کړه نادان ابیات رقم قم

**************

خوند کہ اسلام لہ مسلمانہ سره
د رب کلام لہ تر جمانہ سراه
کار د اسلام دے پہ دستور د رسول
ډیر اهتمام لہ مسلما نہ سره

عطا د حق دے هدایت د رسول

سنت نظام لہ مسلمانہ سرہ

جسمانیت دے عنایت د حبیب

رحمت تمام لہ مسلمانہ سرہ

طاعت د رب دے ایطاعت د نبی

پہ هر کلام لہ مسلمانہ سرہ

درسول الله عشق دخدائے عشق دے

حضور دوام لہ مسلمانہ سرہ

چہ ایردت شی محبت د رسول

لوئ دے اکرام لہ مسلمانہ سرہ

زړه د حضور جبل نور غلامہ

فکر قیام لہ مسلمانہ سرہ

## ******* قلب مسلم *****

زړه د مسلم جبل نور دے گویا

د فکر لاس پہ دعا نور دے گویا

حاجی گوهر غوندے نعره بہ وهی

سکر باطن نزول د نور دے گویا

جذب باطن قرب باطن د حاجی

وصل د نور وفور دنور دے گویا

په عکسی نور شی رسائ د اصل
عالی همت عروج د نور دے گویا

په عرفات به د سینے کړے زاری
مظهر د نور د جیگرنور دے گویا

په شش جهت چه ملکوت شی غالب
غلامی څه نور علی نور دے گویا

******** مسافر حجاز ********

حاجی گوهر ته انتظار لرمه
د ملاقات سترگے په لار لرمه

د مدینے اثر بصر کښ لری
د خپو غبار ئے نور ابصارلرمه

چه د پنجرے څخه ولاړ جړیگی
دغه جړا د زړه قرار لرمه

چه په دیدار شه د مزار مشرف
دغه دولت دے بخت بیدار لرمه

چه نغمگین شه په صلواتو سلام
دغه رباب د عشق په تار لرمه

چه سفارش کړے په غفران د غلام
د ایجابت امید غفار لرمه

## ******* روحی ملاقات ******

حاجی ګوهر وایہ رښتیا تر اوسہ چا څخہ وے
تہ چہ پہ شونډو کښں مسکیګے خپل آشنا څخہ وے

ګرمے خپلے مسافر بہ د حجاز وی چرتہ
شاید چہ لاس پہ نام ولاړ بہ مصطفی څخہ وے

حیران پہ دا چہ لہ یو بل بہ رخصتیګے څہ رنګ
پہ تن جدا بیل ئے پہ زړہ خو دلربا څخہ وی

ډیرے سختئ دی چہ تیریګی پہ سختن د عشق
افسوز پہ دا چہ زړہ آشنا لہ نا آشنا څخہ وی

روضہ زیارت د ناسوتی زیارت ځہ توان نہ لرم
روحی زیارت بہ پہ قیامت لہ مجتبی څخہ وی

کہ مشرف پہ استقبال شوم د حاجیانو شکر
شاکر پہ شکر هر غلام بہ خپل آقا څخہ وی

## ****** مبارکی د حج ******

قبول دے حج لہ منا سک سرہ وی
هر یو قدم دے تبارک سرہ وی

هر یو کلام دے باسلام وی حاجی
قصور د عفوه مناسک سرہ وی

هره دعا ئے هره ندا ئے قبولہ
رحمی نزول دے د لابک سره وی

ځمونږ پہ حق کښں دعا گو شہ حاجی
همت تمام دے نیت چابک سره وی

عافیت غواړه مغفرت فراغت
حساب یسیر دے د تارک سره وی

حاجی گوهر سلام تمام دے پہ تا
معاف غلام دے حال نازک سره وی

غم پہ وصل سره زیاتیگی د عشق
آرامیدن کلہ هامک سره وی

خدائ رحمت دے پہ گوهر د سخا
علی همت کلہ ماسک سره وی

****** استقبال روحی ******

لہ حجازه پہ خیر راغلے حجازی
رود نیل باندے روانہ جهازی

بحروبر تہ دے سودا دە کہ دلبر تہ
د همت پہ سفینہ سوره غازی

چہ فنا شی پہ سودا د عاشقئ کښں
فقط پاتے شی لہ سوزه نیازی

چہ لہ دے منزلہ مخکښ قدم واخلی

فنا تامہ شی د سر پہ جان بازی

بل هنر پہ دنیا ګران نشتہ لہ عشقہ

وصل فصل شنہ لا. مده آتش بازی

ګرم زړه د عاشقئ ګرم تنور دے

پہ تنور کښ بہ څہ رنګ وی جان سازی

سلطانی پہ غلامئ باندے بدل شی

زیړے رنګ ئے پہ باطن کړی غمازی

****** حقیقت کعبہ ******

قدم پہ ړواندے اغستے نہ شمہ

تنها کعبے تہ ودریدے نہ شمہ

لکہ حیران نہ دهغے نہ د دے

پہ یو طرف پاتے کیدے نہ شمہ

کہ پہ جلوه نور د سیدپور شی درون

طرف معلوم دے صبریدے نہ شمہ

الغرض دا چہ لہ کعبے شومہ خلاص

نور د توحید. دے دوه کیدے نہ شمہ

مغروره شیخ دے د کعبے پہ قیام

څہ لہ قیومہ رغیدے نہ شمہ

واسطے تولے اشارے دی د ذات

د ایشارو غلام کیدے نہ شمہ

******* حجر اسود *******

حجر اسود تہ څہ انور وائمہ

د گناہ گارو د زړہ سر وائمہ

تور حجابونہ د گناہ شی بیرتہ

د ھر حاجی پہ درگذر وائمہ

حقیقت نور شہ پہ صورت د حجر

امرے معنی تہ بہ حجر وائمہ

جمالیت شہ پہ صورت د گټے

بوسہ تعظیم د خپل اکبر وائمہ

ہیرے شعبے دی د تعظیم صورتی

ھرے شعبے تہ څہ مظہر وائمہ

غلام ظاھر کښی دے مظہر د ظاھر

مولا باطن ظاھر اثر وائمہ

## ****** توحید باب تفعیل ******

هغہ ذات چہ نہ تغیر شی بہ تبدیل

پہ تعلیل د معلل نشی علیل

یو خو یودے څہ حاجت د یو کولو

څہ معنی دہ د لفظی توحید ویئلو

لہ عارف نہ تپوس وکړہ ملا پریږدہ

لا یعنی لفظی جګړے د هوا پریږدہ

یو کول د ایرادے خپل چہ واحد

هر صفت کښی هر قوت کښی ذات واحد

دا مصدر بہ پہ معنی شی د فاعل

یو ګڼړل د ذات واحد دے پہ فاعل

د امکان وجود پردہ د ذات اقدس دے

غلامی ئے کرشمہ د ذات اقدس دے

## ****** نور دل *******

زړہ یو مشرق دے د مشرق نہ خیجی نور د ایمان

تن یو مغرب دے پہ مغرب پریوزی نور د ایمان

دغہ اثر دے چہ ظاهر دے د بدن پہ اطراف

عمل ګواہ دے چہ ګویا دے پہ دعوت د ایمان

هر یو عمل چې با خلل شي د هوا په غرض

خوشې سودا ده چې پیدا نشي جوهر د ایمان

******* رواجي علم *******

خالي په درس و تدریس ملا رها به نشې

په رواجي علمونو خلاص له بلا به نشې

د معرفت په غرض لوله کتاب او سنت

په فلسفي درسونو خلاص له مولا به نشې

د خدائ رضا دپاره کوه طاعت ایطاعت

په ایطاعت د هوا خلاص له لظی به نشې

د بندګئ په غرض ژوندون دے ستا غلامه

د دنیاګئ په غرض خلاص له هوا به نشې

د قبولیت دارومدار دے د اخلاص په کردار

د آخرت عیشونه بې له رضا به نشې

******* عوارض د عشق *******

مخ دے انور دے چې بلیګی درون

زړه خو مجمر دے چې تودیګی درون

د اور مقام د زړه په بام لرم

د غم لشکر دے چې تودیګی درون

زړه مے انګار دے پنبہ زار د دنیا
پړق د توحید چہ لمبہ کیګی دروں

فکر د یار د بجلئ تار لرمہ
حضور بهن دے دبابیګی دروں

زړه پریشان لکہ بیرل پہ لرزان
وصل د یار دے چہ ګر میګی دروں

عشق کشش د جانبینو لری
د عشق غلام چہ مولا کیګی دروں

****** مذاق احساس ذات اقدس ******

ځہ د احساس ذائقے لس لرمہ
د یار دیدار تہ چہ هوس لرمہ

پنج لطائف لہ امره پنج احساسہ
خلقی ظاهر خواس خمس لرمہ

سمع بصر شمیم د جبے لذت
ګو تے د لاس ادراک د مس لرمہ

پہ هر مظهر کښ د قدرت قوت ځہ
دلیل واثق د ذات اقدس لرمہ

قلبی سری روحی خفی اخفا
مذاقی نور پہ تجسس لرمہ

لہ خدمت گارہ معلومیگی آقا

رسیدہ خیال د غلام بس لرمہ

### ****** وصل بذریعہ پردہ امکان ******

بے رنگہ یار رنگ ئے اغیار څخہ دے

کرشمہ ناز ئے خریدار څخہ دے

څہ لہ اغیارہ خپل دلدار پیژنم

تمام دیدار نظر آبدار څخہ دے

زړہ د حضور لکہ جرس پہ غوغا

گویا جرس شور ے رفتار څخہ دے

د فکر تار د زړہ بلفان پړقوی

نور د بجلۍ تاؤ ئے لہ تار څخہ دے

لین د کثرت جنکشن وحدت دے څما

چال د انجن زور ئے انگار څخہ دے

شان د کثرت کبں دے وحدت غلامہ

عبرت انگیز فکر بیدار څخہ دے

### ******* کثرت نظارہ وحدت *******

جمال د یار دے د اغیار نظارہ

مخ د اغیار دے د دلدار نظارہ

څوک لہ اغیارہ نہ خپل یار تہ رسی
څوک کړی لہ یارہ د اغیار نظارہ
ځنے د اور احساس ګرمی نکوی
څوک لہ ګرمۍ نہ کړی د اورنظارہ
کلہ اول شی لہ آخر نہ معلوم
کلہ آخر شی د اول نظارہ
کلہ عاشق شی لہ معشوقہ غوغا
کلہ معشوق شی د عاشق نظارہ
اکثر غلام وی د مولا نمونہ
تل خو مولا وی د غلام نظارہ

******* فصل دوام عبادت *******

نظر معنی کښں پہ وحدت لرمہ
نظر صورت کښں پہ صورت لرمہ
نګاہ د فکر جلوہ ګاہ تہ ګوری
څہ باک نګر کہ پہ صورت لرمہ
کہ غلامی کړم د روئے بار څہ ګناہ
حضور تمام چہ پہ وصلت لرمہ
ستا لہ جمالہ بہ څہ کم شی وایہ
څہ چہ آرزو د دیدارت لرمہ

گدا نواز نۀ ئے بل خوک دے ځما
کند و کچکول د گدایت لرمہ
غلام د لا الہ الا الله
د محمد پہ رسالت لرمہ

****** دعوت کہ رخصت ******

دا ځما بدن دعا دے کہ دعا
کہ ندا دے کہ صدا دے د بلی
تقاضا تہ د اسماءؑو چہ نظر کړم
یو غوغا دے د توحید پہ مدعا
یا عکسی صورت پزیر د اسم ذات دے
چہ دلیل دے پہ توحید د مسما
لام نافی قد د انسان دے پہ معنی کښ
جوړ الف د الا الله پہ ابتدا
لا مے قد د هر انسان رمز نافی دے
ماورا ئے لہ معنی شو کل فنا
دا حیات د غلامئ اثبات د ذات دے
اهل الله وی لہ ا لله سره بقا

***************

د امکان یو نظاره وه د صفات
نګاره د نظارے د ادراکات

سفلوی علوی تمام خلق عالم
ایشاره ده علامہ ده د دعوات

هر قوت د ایرادت پورے موقوف دے
ایرادت قوت ذاتی دے د لوئ ذات

مکان عکس دے صفت پہ حضور کبن
صفت خود علاقی عکس دے د ذات

د هر اسم علاقہ تر اسم ذات ده
نظر بویہ د توحید پہ باصرات

دا خلق عالم چہ ګورم اسم ذات دے
اسم ذات دے پہ دعوت سره د ذات

فقط پاتے د الله فکران
بے تکراره بے اقراره هر سعات

د دیدار غلامہ تام هلہ دیدار شی
چہ عبرت شی د توحید همہ زرات

## ******** لازم امکان ********

چہ اول وم پہ فنا سره فنا
خہ ئے باک دے کہ دوبار شومہ فنا

بے اختیارہ پہ اول هم پہ آخر یم
مالک نہ یم د فنا اؤ د بقا
کہ بقا دے خو بقا د پاك الله ده
عاریت دے د تمام امکان بقا
مکانی منزل بہ تام پہ گام د مرگ شی
لہ غلامہ دے رضا شی خپل مولا

****************

---

مقام پہ زړه کښې د حضرت لرمہ
وصل پہ گام د محبت لرمہ
شرط د ایمان دے اطاعت د رسول
ځہ اطاعت د محبت لرمہ
زاهد جنت غواړی آرام د پاره
ځہ تاؤ تاب د محبت لرمہ
ځما جنت دے محبت د حبیب
دوام آرام د محبت لرمہ
ختم نبیان ختم ایمان دے ځما
کمال ایمان د محبت لرمہ
ځ هدایت ستا رسالت گڼړمہ
رحم مولا د محبت لرمہ

ستا التجا ده بندگی د غلام

منظور نیاز د محبت لرمہ

****** مثنوی ******

د آفتاب گرمی لہ کومہ دے نما کڑہ

د ماه تاب رنړا لہ کومہ دے گویا کړه

لہ جلالہ جلوه گردے آفتاب

لہ جمالہ جلوه گردے ماه تاب

لہ آفتابہ هنگامہ د ورځ شوه جوړه

لہ مهتابہ هم د شپے هنگامہ جوړه

چہ جمال شی لہ اغیاره پہ حجاب

گویا راشی پہ ماه تاب باندے سحاب

چہ برقع شی د جلال پہ مخ جمال

تیز رفتار د عاشقئ شی پرد بال

دا جلال جمال دوه پر د عاشقئ دی

وصول شوی پہ مذهب د دلبرئ دی

د سالک سلوک پہ دے مشرب کیدے شی

د عارف منزل پہ دے مطلب موندے شی

غلامی د غلامانو دا رونق دے

آموختہ لہ عارفانو دا سبق دے

**************

---

گرم شوے دے درون بیرون ځما
نرم شوے دے د خیال مجنون ځما
دا گرمی بہ همسری شی د نرمئ
گکہ وړ شوے دے درون بیرون ځما
پہ هوس کښں د خواهش حملے شوے تیزے
پہ لرزان شہ پریشان وجود ځما
لہ قدرتہ رهائ غواړه غلامہ
غلبہ شہ اندرون جنون ځما

**************

---

عجب لزت کہ د یارئ غمونہ د جدائ دردونہ
عجب سرور لری منزل د نور لری
لزت حضور لری خیال د عنبور لری
ہیر ضرورت د روئے بارئ فکرونہ د جدائ دردونہ
یوسف مظھر دعشق شہ جلوه گردعشق
یعقوب هنر د عشق مقام خبر د عشق
پہ زلیخا د خون خوارئ زخمونہ د جدائ دردونہ
د یار پہ غم کښں لذت پہ ہیر ماتم کښں فرحت
د سترگو نم کښں غزت پہ دردوغم کښں زینت

لکہ شوگیر د دلداریٔ خوبونہ د جدایٔ دردونہ

ناقراریٔ کبنں قرار پہ بیماریٔ کبنں وقار

خبرداریٔ تہ نظار جلوہ داریٔ تہ بیدار

منظور نظر د غلامیٔ کسبونہ دجدایٔ دردونہ

***************

---

بیا کوہ بیا کوہ خبرے د ایمان ځما

خوہ گیی وایہ خوہ گیی وایہ شکرے دایمان ځما

معروف پہ معرفت سرہ روٴف پہ عنایت سرہ

بیا وایہ بیا وایہ خبرے د رحمان ځما

بیا کوہ بیا کوہ خبرے د ایمان ځما

یکتا پہ ھرصفت کبنں دے توانا پہ ھرقوت کبنں دے

کافی گنڑہ کافی گنڑہ لشکرے د ایمان ځما

بیا کوہ بیا کوہ خبرے د ایمان ځما

واحد پہ صمدیت کبنں دے حامد پہ حمدیت کبنں دے

غوغا لرہ غوغا لرہ سندرے د ایمان ځما

بیا کوہ بیا کوہ خبرے د ایمان ځما

مختار پہ ایرادت کبنں دے غفار پہ آخرت کبنں دے

تازہ لرہ تازہ لرہ احکرے د نیران ځما

بیا کوه بیا کوه خبرے د ایمان ځما

رسول تہ چہ راغلے دے رښتیا دے ما منلے دے

برپا لره برپا لره وزرے د ایمان ځما

بیا کوه بیا کوه خبرے د ایمان ځما

غلام وائ زاری سره مولا رحم داری سره

گویا لره گویا لره دفترے د بیان ځما

******** التجا کمال نور عشق ********

زخم د یارئ نگاره زخم ناسوری نشی

تاک د خیالدارئ ځما پہ سر کہ انگوری نشی

تار د تورو زلفو ستا خمار ځما پہ غاړه دے

خوری مے د زړگی پہ سر پیدا بہ غم خوری نشی

تاک د خیال دارئ ځما پہ سر کہ انگوری نشی

زخم د گرمئ شوه کرشمہ د دلبرئ ځما

یخ یخ بہ ستا دیدار لکہ مرهم د کافوری نشی

تاک د خیالدارئ ځما پہ سر کہ انگوری نشی

تار د تصور ځما زینار دیدار د یار دے

خبر بہ پہ هنر ځما روئ بار سید پوری نشی

تاک د خیالدارئ ځما پہ سر کہ انگوری نشی

مذهب د دلبرئ ځما مشرب دے د یارئ ځما

تقلید د ماورا بہ مے محشر کښں مخ توری نشی
تاک د خیالداریٔ ځما پہ سر کہ انګوری نشی

والی د مرحمت ځما مولا د مغفرت ځما
د غلام پہ غفران سره منظوره مغفوری نشی
تاک د خیالداریٔ ځما پہ سر کہ انګوری نشی

***** لویہ د حیرت *****

چہ تورما ښام شی دصبا تدبیر کومہ غم غلطہ ومہ
چہ رونړ صبا شی د ماښام تدبیر کومہ ځان خوشحالومہ

پریشانی ده دنیا د ځان خواری ده دنیا
د خیال بازی ده دنیا د رنګ سازی ده دنیا
ځہ پہ حیرت کښں د نیستے جړا کومہ غم غلطہ ومہ

حیرت انګیز کارونہ غفلت آمیز حالونہ
د زندګیٔ چالونہ د بندګیٔ زیانونہ
د خیر پہ طمع شرین ژوند خرابومہ ځان خوشحالومہ

ژوندون لنډیګی ځما امید زیاتیګی ځما
عمر کمیګی ځما حرص پیدا کیګی ځما
عبس کارونہ د ماشوم غونډے کومہ ځان خوشحالومہ

د ځمایئ پہ غوغا د هوایئ پہ غوغا

د وفایئ پہ نوا د جفایئ پہ ژړا

عکسی ژوندون دخاک شیشہ کښ ځلیدمہ ځان خوشحالومہ

چہ ځان تہ وائے غلام د خپل مولا کړه سلام

د بندګئ پہ نظام پوره کړه خپل انتظام

بس نوکرئ کښ د توحید نوکر د یمہ ځان خوشحالومہ

چہ تور ماښام شی د صبا تدبیر کومہ غم غلطہ ومہ

چہ رونړ صبا شی د ماښام تدبیر کومہ ځان خوشحالومہ

***********

---

دیدار د خپل نګار مے د اغیار پہ مخ لیدلے دے

ستا د زلفو تار سره مے تار د زړه تړلے دے

ستا د زلفو تار لکہ ځما د زړه آزار دے

تریاق مے د عراق دے دے عراق وصل لیدلے دے

ستا د زلفو تار سره مے تار د زړه تړلے دے

زخم د کثرت ځما آهم بہ شی وحدت ځما

وحدت شهود مے د بهبود منزل لیدلے دے

ستا د زلفو تار سره مے تار د زړه تړلے دے

راه رهبر سید پور من راه روئ دستور من

زنګ د ګړنګوال ئے د وحدت رنګ تو ګیدلے دے

ستا د زلفو تار سره مے تار د زړه تړلے دے

## ***** سوز *****

نشته نشته بے لتا آرام ځما
که باور کړے آشنا دا کلام ځما

که ارام دے که خرام دے خو په تا دے
گنړی نشی بے لتا ارام ځما

منت یار یم په دا باد صبا ته
چه رسید کړے تر آشنا پیام ځما

که قوام دے که دوام دے خو لتا دے
نشته نشته بے له تا دوام ځما

بے لتا شهد و شکر زهر قاتل دی
ستا په غم شهد و شکر دے کام ځما

ځه به ستا په دردوغم له غم بے غم شم
که منظور شی درته دا ناکام ځما

چه د ستا رضا موندے شی واړه خیر دے
که پرے درومی مال وسر تمام ځما

ستا په مخ چه پیچ و تاب د زلفو تار شی
خود بندی شی مرغ جان په دام ځما

سید پوری مولا د خواست په محشر کاندی
له مولا چه کړه رها غلام ځما

## ***** نغمہ د توحید *****

زه د توحید انکار لرم کہ پرے تودیگے راځہ
زه نورانی شرر لرم کہ پرے تودیگے راځہ
ستا د نارت نہ څما نور بہ کمالت نہ کوی
زه جلآلی انوار لرم کہ پرے تودیگے راځہ
کمالیت مے دے شامل لہ هر صفتہ سره
زه کمالی طاقت لرم کہ کامل کیگے راځہ
څما جمال دے لازوال قدیم لہ ذاتہ سره
زه جمآلی زینت لرم کہ عاشق کیگے راځہ
پہ لوئے دعوت دجلالت جمالت غواړم لہ تا
زه د حیرت نعمت لرم کہ حیرانیگے راځہ
غلامہ خدائے د د مولا پہ غلامئ کہ منظور
زه مولائ قوت لرم کہ غلام کیگے راځہ

## ***** راځہ راځہ *****

راځہ راځہ یاره راځہ راځہ لہ نازه سره
نازبینہ نازبینہ ناز راوړه لہ رازه سره
مرحبا مرحبا اهلا و سهلا راغلے پہ سیر
تہ روانہ خیرآمانہ قدم لہ نازه سره

ستا ددیدن پہ انتظاردوړه چشمان دی نگران
رنگ یے گونہ تن یے چونہ رفتار لہ نازه سره
دغلامئ گرمی چہ گرمہ شی مولا شی رضا
نغمہ د سوز د بندگئ خائ لہ سازه سره

***** اموز د راز *****

آفرین د عاشقانو پہ همت بیا
آفرین شہ د خوبانو پہ زینت بیا
آفرین شہ د عاشق پہ تب و تاب
آفرین شہ د ترکانو پہ منت بیا
پہ جنون د عاشقئ د صدرحمت وی
آفرین شہ د لیلی پہ لیاقت بیا
شابہ شابہ د عاشق پہ اطاعت
آفرین شہ د هادی پہ هدایت بیا
آفرین د عاشقئ پہ مریدانو
آفرین شہ د مرید پہ ارادت بیا
آفرین د داستاد پہ دلبرئ وی
آفرین شہ د شاگرد پہ علمیت بیا

آفرین شه د عاشق په سوز و ساز
آفرین شه د خویانو په رغبت بیا

کبر ناز د دلبرانو ابتلاء ده
آفرین د عاشقانو په کلفت بیا

شکر شکر د مولا په لوئ دولت
آفرین د غریبانو شکریت بیا

آفرین دے د غلام په غلامئ وی
هزار حمد د مولا په عنایت بیا

***** نور د معرفت *****

رحیمه خدایا د غفران په دولت راکه غنا
رحیمه خدایا د رحمت په حرمت ماکه رها

ستاریت لرے ته جباریت لرے ته
کریمه خدایا د کرم په قوت راکه سخا

حیات عزت لرے ته علم قدرت لرے ته
قدیره خدایا د قدرت په قوت راکه هدی

سمع بصر لرے ته په غیب نظر لرے ته
خبیره خدایا د خبر په حکمت راکه لقا

ازلی شان لرے ته ابدی توان لرے ته
قدیمه خدایا د فنا په دولت راکه بقا

گناه گاری د غلام شرم ساری شامدام
غفوره خدایا د تقوی په قوت راکه تقا

## ***** استغفار *****

ما یارکړے یار بیزار شه په آزار
په یارئ سره چه یارکه ما اغیار

د اغیار یاری خواری اؤ بدکاری ده
خدائے دنکړی شرمسارخوک پدے کار

تر قیامة ما له دا ندامت بس دے
نصوحا غوندے توبه یم استغفار

د توحید په گرمئ گرم سر څما دے
د منجلس گرمی څما گرم گفتار

په خدمت د عاشقئ کښ د خوبانو
بے غزله څما نه زده بل روزگار

لویه خدایه د خدائ له برکته
ما غلام په محشر مکړے شرمسار

## ***** تقصیر د استغفار *****

له هیره شرمه نه ما هیر تاته کتلی ندی
په سپین رخسارد شنه خالونه ما لیدلی ندی

په کتو خاندے خوشحالیگے هیڅ خفګان نکوے

په حق کتوسره ما تاوته کتلی ندی

داسراسرځما نقصان ستاخواحسان دے مدام

له خپل تقصیره نه ما تاوته کتلی ندی

دعاشقئ په مشرب دا مذهب نادرموندے شی

له غیریت نه ما اغیارو ته کتلی ندی

په منظورئ دشی منظورځما طاقت دغه دے

په اطاعت کښ مابل چاوته کتلی ندی

ناز برداری د مولا کار د غلامئ دغه دے

ما په خدمت کښ لدے غوره څه موندلی ندی

***** حال *****

زړه ځما پرقیګی د توحید په برقیت سره

سترګے م ژړیږی ستا دمخ په شمسیت سره

تاب دجلالت چه په جلوه شی ځه بےتابه شم

زړه ځما نړیګی ستا د حسن سیاست سره

هله به بے غم شم چه بے دمه شم له دمه نه

عمر دے تیریګی د خوارئ په عزلیت سره

تیر بشی دروان د آزادئ بند به په ګورشے

جسم جوهری دے فنا کیګی خاکیت سره

وخت د بندګئ بنده تیریګی بندګی کوه

ستا اکسیری ژونددے خرابیګی په غفلت سره

شکر په دولت د غلامئ دے چه غلام شومه

عیش د آزادئ د مولا راکړی آخرت سره

## ***** اعلان د توحید *****

زه د توحید په چغو زه د توحید په چغو

تاؤ ته نارے وهمه

زه د یارئ په سترګو زه د یارئ په سترګو

تا ته اشارے کوؤمه

راشه له ما نه شه ما زه به له تا شمه تا

زه په رنګدارو لبو زه په رنګدارو لبو

تا سره یارئ کومه

اور به دے بل بشی په زړه حال به جل بل شی دزړه

زه د وصال په پښو زه د وصال په پښو

ستا زخم سازی کوؤمه

سر توره سر یمه زه په کوخو سر یمه زه

ستا د رخسار د لیدو ستا د رخسار د لیدو

ستا انتظاری کوؤمه

په دے به مړ شمه زه　　په خاک به خړشمه زه

د عاشقئ په اښکو　　د عاشقئ په اښکو

تاته خون باری کوؤمه

که گناه گار دے غلام　　که شرمسار دے غلام

زه د مولا په خوبو　　زه د مولا په خوبو

ستا برده باری کوؤمه

## ***** منزل *****

ده په اسم ابتداء　　انتها په مسمی

یوه لار ده مستقیم　　برابر تر مسمی

په حضورسره چه یادشی　　یوشی اسم مسمی

بے حضوره چه یادیگی　　یو له بل نه وی جدا

ځکه اسم مسمی　　نه چه یودے نه جدا

حضوری بے حضوری　　وصل فصل که پیدا

دا کلفت د بندگئ　　د عوامو ابتلاء

عاشقان تر په آمان　　شو په فضل د مولا

تصور د اسم نکړی　　خیال بسته په مسمی

دا آسانه بندگی ده　　هم له ذاته نه عطا

گرفتار په تکرار نوی　　گرفتاروی په سودا

ورک منزل شی هم مقام　　یوآشناشی بل ناشنا

یاری پاتے د اغیار یارچہ یارشی دھرچا
ختم کارد غلامئ شی پہ حرمت د خپل آقا

## ***** مسافر *****

کہ پہ وړاندے قدم واخلی مسافر
پہ لنډو بہ شی سفر د مسافر

کہ پکښ ځائے د رفتار شہ پہ قرار
دا قرار بشی آزار د مسافر

کہ پہ میان د لار مقام کړی راہ روان
پہ مقیم باندے بدل شی مسافر

نوے نیت نوے کلفت نوے رحلت دے
دوبارہ تہ پہ سفر شی مسافر

تر منزلہ پہ اول نیت سفر بویہ
خسارہ مہ شہ سفر د مسافر

سفر څہ دے یعنی دا ژوندون د دھر
ختم ژوند ختم سفر د مسافر

غلامی د غلامانو لوئ سفر دے
څوک چہ ځان لری غلام دے مسافر

## ***** آئینہ د زړہ *****

ستاد مخ عکس زیبالہ  داځما شیشہ صفادہ

تعارف لہ ستا د شانہ  داځما د سرسودادہ

دغہ ستابوج دعرفان تہ  ما غریب تہرلے ملادہ

ښایہ بل ځما پہ شانے  تا پرے کړے ابتلاءدہ

دا ځما نعرہ د عشق  د ازل قالو بلا دہ

بهادرشوم پہ عالمہ کښ  عبدیت نغمہ ځما دہ

دغہ طوق د بندګئ تہ  اولین غاړہ ځما دہ

ما لہ شوقہ ملا تہړلے  دتوفیق برخہ لہ تادہ

نہ مختیاریم نہ مجبور  میا نہ درجہ ځما دہ

دا تمام مظھر د کن  ستا د یو نظر بها دہ

استغفار اؤ ا لامان  کرشمہ دے بے بهادہ

دمولا پہ خپل غلام کښ  د خدمت نہ مدعا دہ

## ***** قوت د عمل *****

زہ رضا ستا پہ رضا  کہ وفا دے کہ جفا

څہ چہ تا سرہ لائق دی  هغہ تہ وکہ لہ ما

څہ چہ ماسرہ لائق دی  هغہ مہ کوہ پہ ما

توبہ توبہ معرفت زہ  عافیت غواړم لہ تا

تہ معاف کړے لویہ خدایہ  ماجرا جرم ځما

آئنده م خورسنده کړے　　　　قوت راکہ لہ تقوی

فراغت عافیت غواړم　　　　معرفت سره لہ تا

آشنائ د غلامانو　　　　لوئ کرم دے دمولا

***** عنایت *****

هر صورت چہ دلالت د حقیقت دے
هر دلیل دے خپل منزل وتہ رسا
دا مکان دے لا مکان سره پیوند
لکہ اسم جدا نوی لہ مسمی
هرصورت اؤ هرقوت چہ دا مکان دے
حقیقت کښ لہ قدرت نہ دے عطا
غلامی د غلامانو میراث نہ وو
هدایت اؤ عنایت شہ د مولا

***** جمال و جلال *****

ستادمخ لہ تاوه دواړه سترگے سرے
زړه ځما باندے بلیگی لمبے سرے
یا سرے سترگے سرے سروتکے دنیران دی
یا ورتیگی د عاشق د زړه قطرے

چہ راواړه وے د ناز کرشمہ دارے
بم باری ځما په لور نہ کړی اسرے
دا ځما ژوندون د حسن ابتلاء ده
یا بلا ده چہ پرے شوم ذرے ذرے

## ***** قرآن اؤ مسلمان *****

لہ تاخفا دے مسلمانہ دا قرآن ولے
منے په ژبہ عمل نکړے پہ فرمان ولے

خفا قرآن دے لہ تا — پاتے فرمان دے لہ تا
رضا شیطان دے لتا — وړئے ایمان دے لہ تا

شوے مسلمانہ تہ لہ مانہ روګردان ولے
منے پہ ژبہ عمل نکړے پہ فرمان ولے

لتا نہ غواړی کلام — ایمان پہ ما کہ تمام
زه بہ دے وکړم نظام — خلاصے بدرشی مدام

ځما د حکمہ مدام خلاف روان ولے
منے پہ ژبہ عمل نکړے پہ فرمان ولے

پہ ما ایمان لرے — تش پہ زبان لرے
پہ زړه نقصان لرے — ظاهر بیان لرے

خالی پہ خلے وائے خپل ځان تہ مسلمان ولے
منے پہ ژبہ عمل نکړے پہ فرمان ولے

راشہ غیرت کہ پہ ځان پریګده د رسم بتان
مکړه رواج د جهان کارد توحیدکہ روان
پہ یو الله رسول کتاب نکړے ګذران ولے
منے پہ ژبہ عمل نکړے پہ فرمان ولے

## ***** راشہ راشہ *****

راشہ راشہ ځما یاره راشہ راشہ
لہ دیداره طمع داره راشہ راشہ
چہ تابہ دطبیعت پرے سره زرکیګی
کیمیا ګره اکسیرداره راشہ راشہ
چہ مفتون پرے لہ فتنونہ رها کیګی
لہ علاجہ خبرداره راشہ راشہ
چہ پہ یو نظرد خاورے اکسیر کیګی
لہ نظر نہ کار برداره راشہ راشہ
چہ غلام دے لہ هوا نہ فنا کیګی
لہ بقا نہ وفا داره راشہ راشہ

## ***** حیرت ناسوتی *****

تا څخه تا څخه تا څخه دے روح څما
روح څما روح څما روح لره دے روح لتا
ګل لره ګل لره ګل لره ګلزار ئے ته
ګل لره مل لره ګل لہ ګلبانی لہ تا
کار د څمائے څما ستا لہ څمائے نہ دے
کار څما کار څما کار لہ د کارئ لہ تا
کیف دګونا ګونہ ګل ستا لہ بے کیفی نہ دے
کیف څما کیف څما کیف لہ د کیفی لہ تا
رنګ لره رنګ لره رنګ لہ رنګدارئ لتا
وجود د ناسوتی وجود یعنی لہ روحی وجود
وجود لہ د روحی وجود جود د ایرادے لتا
بے لتا بے لتا نیشتہ بود و باش د چا
ما څخه ما څخه لہ تا دے حیاتی څما
دا کلام دا کلام تام کہ د توحید سره
قال څما قال څما حال د قوالی لہ تا
څہ یم زه څہ یم زه دا څرنګ وینا کوم
حال د غلامئ لره تاب د غلامئ لہ تا

***** منم *****

تشریعی حساب منم د قضا رضا منم

شکردا چہ پہ فرمان یم دین اسلام تمام منم

زہ غلام ددین اسلام یم خدائے رسول پہ حق منم

خدائے دخیرکړی ددارینو زہ د عشق آثار منم

دا غزل مقام د عشق دے زہ د عشق بیان کوم

***** مد و شد *****

زہ د توحید چغے وھم ولاړیم ستا کو څہ کښں

جام دتوحیدزہ گرځوم ولاړیم ستا کو څہ کښں

تا پہ توحید پوہ کوم ولاړیم ستا کو څہ کښں

تا لہ ایمان نہ خبرؤم ولاړیم ستا کو څہ کښں

ستا پہ غم وینے تویہ وم ولاړیم ستا کو څہ کښں

لاردمقصود تہ د بوځم ولاړیم ستا کو څہ کښں

د خپل آقا سلام کوؤم ولاړیم ستا کو څہ کښں

د غلامئ خدمت کوؤم ولاړیم ستا کو څہ کښں

## *****مست نہ شے*****

ځما پہ یارئ مستہ دبل چا پہ یارئ مست نشے

ځما پہ توحید مستہ داغیارپہ یارئ مست نشے

ځما جمال دے بے مثال ځما کمال دے با جلال

ځما پہ دیدارمستہ دبل چا پہ دیدارمست نشے

وسیع شہ دمضمون جولان تنگ شہ دکاغذبیان

ځما پہ گرمئ مستہ دبل چا پہ گرمئ مست نشے

کار دغلامئ پہ تا شان د مولائ پہ ما

ځماپہ خدمت مستہ دبل چاپہ خدمت مست نشے

## *****توصل*****

پہ سرگرمئ کښں د توحید گرم گفتار ځما

پہ کردارئ کښں د توحید گرم کردار ځما

کہ د مجلس یاران گرمیگی د توحید پہ چغو

لفظی شرر دے د باطن گرم انگار ځما

رانزدے کیږہ پہ حلقہ کښں الله وایہ الله

الله الله دے لہ گرمئ گرم تکرار ځما

تہ مسلمان ئے پہ جزبہ داسلام وایہ الله

عاشق دخدائے شہ پہ اخلاص گرم رفتارځما

په تخت دزړه باندے داسم الله کیږده کرسی

ذات اقدس په تصور کښ شهر یار ځما

له شوقه واوره له مولا طالبه ځان که خبر

د بندگئ په گرمئ گرم دی اشعار ځما

هغه له کیف نه بے کیف له چون نه بیچون

په صفت پاک سره موصوف دے رب غفارځما

دتمام امکان وجودعلم قدرت کښ دے بند

دلیل د وصل اسم ذات وایم افکار ځما

وکړه انصاف په کوم دستورکوے غفلت له مولا

په صداقت سره توبه غوخ که زینار ځما

خوف و رجا طمع تکیا په ماورا مکوه

د یو مولا په قدرت ختم دے هر کار ځما

پیرسیدپوری نقشبندی دسرهندی په عنوان

وایه غلامه ربانی نورالانوار ځما

## ***** غواړه لہ ما نہ ما *****

نیمہ شپہ ژاړه نیمہ شپہ ژاړه
پہ هسکہ غاړه پہ غم لتاړه
ستا لہ ژړا نہ ډیر شرمیگمہ ځہ پہ تا رحمیگمہ ځہ
د زړه لہ سوزه د زړه لہ سوزه
ځان تہ م بوزه ځان تہ م بوزه
ځان تہ م بوزه نہ صبریگمہ زه پہ تا رحمیگمہ ځہ
ځما غم خواره ځما غم خواره
ځما دل داره ځما دل داره
ځما نگاره تل کړیگمہ ځہ پہ تا رحمیگمہ ځہ
جدائ سختہ جدائ سختہ
پہ ما شوه سختہ پہ ما شوه سختہ
پہ ما شوه سختہ نزدے کیگمہ ځہ پہ تا رحمیگمہ ځہ
ظاهر نشان ئے تہ ظاهر نشان ئے تہ
پاکی بیان ئے تہ پاکی بیان ئے تہ
باطن غلامہ مولا کیگمہ ځہ پہ تا رحمیگمہ ځہ
غواړه لہ ما نہ ما غواړه لہ ما نہ ما
غواړه لہ ما نہ خوشحالیگمہ زه پہ تا رحمیگمہ ځہ

## ***** وحدت شهود *****

دا پہ څہ شومہ لہ تا نہ زه جدا
وایہ وایہ مهربانہ دلربا
دا څما څمائ واړه ستا کرم دے
کرم تل وی د کریم سره همتاً
زه چہ خپل احساس کوم اثردفعل هم
فعل کلہ د فاعل نہ وی جدا
اثر څہ یعنی پرتو د ارادے دے
چہ ظاهر کښی یو صورت شی هویدا
اثر تل وی د تکوین پورے موقوف
د تکوین وجود تر کن وی لازما
خوف خطر دمال وسر څہ پکارندے
مال وسر مے ستا لہ سر نہ شہ فدا
دغہ تہ صاحب دکن ئے بل خوک ندے
غلام ولے ځان گڼړی لہ تا جدا

## ***** مکان از لا مکان *****

دا څما د بود وباش معاش لہ تا دے
کہ آرام دے کہ نا آرام دے خو لہ تا دے

زه د ظل غونده یم عکس د خپل اصل
که وجود دے خو اصلی وجود لہ تا دے

دا ظلی وجود عبرت دے د اصلی نہ
کہ عبرت دے عنایت کرم لہ تا دے

ما پہ خپل احساس کښې ډیر فکرونہ وکړل
خاتمہ د هر یو خیال احساس لہ تا دے

غرض دا چہ حوالہ احوال ځما شو
چہ ځما د ځمائے نظام لہ تا دے

لنډه لار ده د حیرت منزل ئے تہ ئے
پہ دے لنډه لار غلام روان لہ تا دے

*****معاینہ ذات اقدس*****

دا ځما پہ زړه نشین فکر د چا دے
تصور مے اندرون جبین د چا دے

تصور ستا د رخسار لمبہ د اور ده
لہ دے اوره نہ باطن سوے د چا دے

یو شغلہ چہ شہ مکان تر لا مکانہ
دا لہ عشق نہ بل شوے اور د چا دے

خیال د فال دے د برقی بڼن دباؤ شہ
پہ مکان باندے پرتو د مخ د چا دے

چہ رنړا پرے لامکان شہ لہ مکانہ

دا د فکر بجلی ګر زړګے د چا دے

چہ تالان ئے کړ ځما د زړه دالان

دا د غم نہ باریده طوفان د چا دے

بم باری د تورو سترګو ستا کتل دی

دا لہ ورایہ نہ بمبار نظر د چا دے

پہ دولت د ارادے غلام خرید

وایہ ستا نہ دے نګاره دبل چا دے

***** حیرت *****

خبر نہ یم لہ ثوابہ          نہ خبر یم لہ عذابہ

چہ خبر شومہ لتا نہ          بے پروا شوم لہ حسابہ

نہ م شمارنہ م تکرار          یم بیتاب لہ سوال جوابہ

پہ یکتا نظرچہ ګورم          هر څہ دی ستا لہ جنابہ

د امکان پہ نظاره کښ          څہ کهتر یم لہ حبابہ

ستادمخ بیاض تہ ګورم          خبر نہ یم لہ بل کتابہ

دهر سوال مقابلہ کښ          ستا بقا ده لہ جوابہ

پہ هستئ کښ دا غلام          لر و بر شہ لہ حسابہ

## ***** مضمون از بال جبریل اقبال *****

لار دمحبت کښ نوی څوک د عاشق سره
مل وی د عاشق مدام دردوغم سوز و ساز

ستا له خدائے نه ده څمادليونتوب ګيله
ځان دپاره لامکان ما دپاره دے مکان

کلام د عارفانو وی خوش لکه باد صباح
تارکښ دمعنے لدوئ نم وی دژوندون صفا

کوځه که دشعيب نبی ستاشی دمنزل مقام
لار دشبانئ پسے لار د کليمی دوه ګام

عمل د عاشقانو وی سوز د دلبرئ مدام
زنده وی پائنده وی تل موت وی په عاشق حرام

موت په غفلت سره عشق دبيداری وی تل
کارددينداره سره روح کښ دينداری وی تل

مليح په ملاحت سره شعر د اقبال دے
مدارکښ په وحدت سره نظم ګړنګوال دے

## ***** قرآن په اجرت سره لوسته منع دے *****

په اجرت سره چه لولی څوک قرآن
ناست په قبر دمرده وی ختميان

مقرر ورلره خئے حلوا چایونہ
آغستونکی د پیسو وی قاریان
دقرئت پہ گرمئ گرم شورددوئ وی
یو د بل قرئت تہ نہ وی سامعان
دغہ فعل د روئے پہ چارمذهب حرام دے
فانصتوا دلیل ناطق دے د قرآن
دا ہوہئ اؤ دغہ چائے روا نہ دی
نہ ثواب دے چہ پہ خلاص شی مردہ گان
دا مردہ کہ لہ قرآن وی خلاف تل
دوبارہ تعذیب وئل دی پہ قرآن
پہ قرآن کبنں خو کول یا نہ کول دی
دے پہ ژوند وو لہ د دوارہ یے فرمان
دوبارہ ملامتی شرمندگی دہ
اوریدل لوستل حکمونہ د قرآن
بلہ دا چہ ثواب خدائے خخہ موندے شی
نزدے کور لری مسجد پکبنں یکسان
خہ حاجت دے چہ پہ قبر باندے لولی
یے لہ قبر نہ ثواب دے یے پایان

بے بدلہ د قرآن ثواب کثیر دے

چہ د یو حرف ئے کیدے نشی بیان

کہ مردہ وی نیکوکارصاحب دبخت دے

پہ لوستلو د قرآن وی شادمان

د غلام ہلہ جنبہ پہ غرض نہ دہ

خدائے د ما کہ لہ جنیے نہ پہ آمان .

***** استدعا *****

ما پرون لیدلے ستا جمال زرین دے

تابندہ پہ تب وتاب کبن پلوشین دے

همیشہ بہ لائقان وی نگران ستا

پہ غفلت سرہ غافلہ کہترین دے

هیخ ئے مثل لہ مثالہ سرہ نیشتہ

بے لہ رنگہ بے لہ گونہ بہترین دے

ځما خیال د ستا .لہ خال پیوند وی

لکہ تاک لہ مجاور نہ سربرین دے

ځما خیال لہ خپلہ خیالہ جدا مکړہ

تصور ستا د جمال ځما قرین دے

قرنیہ یو خزانہ د غلامئ دہ

غلام ځکہ غلامئ کبن خوشترین دے

## ***** موت و حیات *****

څما د مرګ استاذے ماته رسیدلے ندے
په دواړو سترګو مے له شوقه نه خکل کړے ندے

که په خندا راځے خندیګه په خندا به درومے
ما د آشنا استاذے چرے خفاکړے ندے

که څما سر غواړے قربان د له غوختو نه شمه
ما سرومال د خپل دلبر نه غوره کړے ندے

ستا له نامے څما اول آخر قربان دے قربان
ماله خپل مرګه ژوندون څه غوره کړے ندے

ژوندون خو ستا دے چه دمرګ نام ونشان نلری
څماژوندون سوالی ژوندون دے دوترشوے ندے

ناشده وخت دامتحان دے خدائے د درکړی برے
له ماورا نه ما امداد چرته غوښتلے نه دے

سیدپوری پیره په پیرئ دصدرحمت شه رحمت
تا په ارشاد کښ د بدعت سبق وئیلے نه دے

غلامه ګرمه ستا نغمه ده د توحیددپاره
ستا په نواکښ ما دشرک تناب موندلے ندے

## ***** جذبہ د شوق *****

زہ بہ گیلہ دخپل جنون صبا لہ چا نہ کوؤم

لیونے تا کڑمہ گیلہ بہ لہ بل چا نہ کوؤم

چہ پہ مژدہ د یعفوا عن کثیر بشیرشومہ

زہ بہ امید د مغفرت صبا لہ چا نہ کوؤم

مولا برحق د غلامانو داسراؤ تہ ئے

زہ بہ طلب دمولائ شفقت لہ چا نہ کوؤم

## ***** څہ دی ؟ *****

نہ پوهیگم د دنیا دوران کښ څہ دی

خفا شوی د دنیا یاران پہ څہ دی

ځہ چہ گورم سراسر د خاک بازی دہ

جدا شوی د دنیا دوستان پہ څہ دی

لہ ډیرحرصہ د چا ستر گے مړے نہ شوے

ړاندہ شوی ئے د حق چشمان پہ څہ دی

حق بینی د حق بینانو حقیقت دے

بے لہ حق نہ کوشیدہ عرفان پہ څہ دی

کور و کر شم لہ دے دهر د یارانو

بے وفا د زمانے خویشان پہ څہ دی

دقدرت په قبضه بند شه سود اؤ زیان
بے حیا د سوداؤ زیان دوستان په څه دی

هر فانی به په فنا سره فانی شی
غنوده د بیدارے مژگان په څه دی

دا غلام چه د خوبانو غلامی کړی
محجوب شوی له مولا ترکان په څه دی

## ***** شریعت اؤ طریقت *****

څما نوے نوے خیال ستا تازه تازه جمال
هر ذره مظهر جمال جلوه گر ستا د کمال
نوے فکر نوے حال هوش ودم په قیل وقال
په هر آن په هر زمان تصور د خط و خال

## ***** روحی ذکر *****

خال مے په خیال لره نادانه څه دلدار یمه
ستا په طلب کښں څه لتا نه وفادار یمه

تغافلی مکوه تساهلی مکوه
که ته بیدارئے څه بیدار له هر بیدار یمه

عفوت له علمه سره کوؤم له حلمه سره
ته گناه گار ئے څه په وصف کښں غفار یمه

ستر صفت دے ځما کارمرحمت دے ځما

کہ تہ شرمیگے ځہ لتا نہ حیا کار یمہ

واجب وجود یمہ زہ صاحب دجود یمہ زہ

رحم کہ غواړے لہ رحمت نہ ځہ تیار یمہ

کرم دے کار ځما رحم بسیار ځما

کہ تہ پہ شمارئے ځہ لتا سرہ بے شمار یمہ

خوف و رجا لرہ تکیا پہ ما لرہ

کہ تہ غلامہ ئے ځہ مولا ستا نمکدار یمہ

***** ففروا الی الله *****

د ماشوم پہ موراؤ پلارپسے جبئ وی

ژړیدونکے د آبا پہ جدائ وی

عاشقان پہ معشوقو پسے ژړیگی

چہ پہ خیال ئے تورے سترگے ځمارئ وی

حقیقت لکہ ماشوم توحید ئے مور دہ

تصور ئے محبت د مادرئ وی

بے لہ مورہ د ماشوم خہ قرار نشی

کہ د سرو زرو ئے جوړہ گوارئ وی

آرام گاہ د ماشومانو غیږ د مور دہ

بے لہ مورہ ئے دواړہ سترگے خونبارئ وی

د عارف گذاره یے لہ خدایہ نشی
پہ آرام کښں ورتہ پیښے بیماریٔ وی
یے مولا د غلامیٔ ژوندون دوزخ دے
پہ دوزخ کښں بہ خوک څہ پہ قراریٔ وی

## *****بشریت خصوصیت*****

پہ یو لاس کښں م لمن دے د لاهوت
پہ بل لاس کښں م ځرمن دے دناسوت
پہ ما بین کښں د تراب اؤ د سماءً
معلق وجود څما لری ثبوت
پہ یولاس کښں م ایمان دے دقرآن
پہ بل لاس کښں م شیطان کوی کرتوت
پہ یو لاس کښں م هوا ده هم هوس
پہ بل لاس کښں م ورق دے د قنوت
پہ یو لاس کښں م جلوه نور د صباح دے
پہ بل لاس کښں م ظلمت لری ثبوت
پہ یو لاس کښں م غنچہ ده د توحید
پہ بل لاس کښں م بشر ده د خپل بوت
پہ یو لاس کښں م نعمت د خپل مولا دے
پہ بل لاس کښں غلامی ده د خپل قوت

په یو لاس کښې م غنم دے د جنت

په بل لاس کښې م نیسلے برګ توت

په یو لاس کښې څما رنګ صبغة الله دے

په بل لاس کښې څما رنګ دے د تابوت

په یو لاس کښې د غلامۍ دے کنودت

په بل لاس کښې دار مدار د ملکوت

***** ایمان *****

د ایمان نام و نشان یو خبر دے بل نظر

د ایمان مقام ګڼړل هم مثل هم پیژندل

ورسره دی پوهیدل ضرورت لرے کول

حکم خدائےحکم رسول په اقراروتصدیق وړل

که کتاب دے که سنت یو منل دی بل کول

***** تلوین و تمکین *****

د آوامرو امتثال دے په ګردن څمونګه

خوب و خوردن څمونګه

خواب د غفلت مکوه کارپه اجرت مکوه

غیرالله نیت مکوه شرک و بدعت مکوه

ختم آخر دے په مردن څمونګه

خوب وخوردن څمونګه

جلآلی نام لره | زړه پرے ګلفام لره
ذکر دوام لره | حضور تمام لره

د بندګئ چال و چلن ځمونګه

خوب وخوردن ځمونګه

خرچ خوراک د سفر | سبیل راه ګذر
حصول کار هنر | سرور بار خبر

خود لا مکان بہ شی مسکن ځمونګه

خوب وخوردن ځمونګه

ربوبیت د کریمہ | الوهییت د رحیمہ
ستاریت د حلیمہ | غفرانیت د اثیمہ

لہ فضلہ پاکہ رهیدن ځمونګه

خوب وخوردن ځمونګه

آمین آمین آمان | ځما ایمان آمان
نشان بے نشان | عیان بے عیان

د غلامئ در ګفتن ځمونګه

خوب وخوردن ځمونګه

## ***** نیغہ لار *****

عشق پیداکیگی دوحدت پہ چغ چغوسرہ

خدائےنہ موندعکیگی درواج پہ شک شویوسرہ

رنځ دعاشقئ کلہ جوړیگی پہ داروسرہ

عمر دعاشق دے چہ تیریگی پہ خواروسرہ

زړونہ خړوبیگی درحمت پہ فواروسرہ

جام دتوحید ښائ برابر دلبوسروسرہ

تش خمان ډکیگی دفیضان پہ قموسرہ

نفس ابلیس ورک کیگی دوحدت پہ بمباروسرہ

زړہ خوبیداریگی ستادغم پہ دغ دغوسرہ

وینے مے جوشیگی ستادخیال پہ غلغلوسرہ

زړہ پریشانیگی د انفس پہ ولولوسرہ

سترگے خو ژړیگی دهجران پہ بلبلوسرہ

خدائے نہ رضاکیگی درواج پہ چلولوسرہ

جوش دزړہ زیاتیگی دتوحید پہ ترانوسرہ

باغ دسیدپورړک دے دتوحیدپہ شگوفوسرہ

زر بہ شی غنچے غلامہ راوړہ پہ جولوسرہ

## ***** نغمہ د معرفت *****

دا ځما فکر مضراب سینہ رباب
نغمہ ګین دے ستادزلفو هر تناب
ساز اؤ سوز دهر آواز جدا جدا
هریو تارستا پہ رخساردے پیچ وتاب
اهل دم لہ زیروبم نہ کوی دم
پورا نہ کہ چا دخپل فکرکتاب
چہ لہ دم نہ شی بے دم نسل آدم
هغہ دم بشی بے غم د غم حساب
بے لہ مرګہ خو دیار نقش و نګار
سور انګار زړه دعاشق لری کباب
لہ لا ناسوت اؤ ملکوتہ خبر نوی
ما سوی لہ یاره هر څہ دی حجاب
خیل د خیال ئے لہ ځما نہ وی نیسلے
لہ دوامہ ایقانے خپہ پہ رکاب
د غلامہ د غلامۓ مزدوری ورکہ
یعنی پورتہ کہ لہ خپل حسن حجاب

## ***** قرب وجوبي *****

نیک عمل اؤنیک حضور — علامہ دہ د قربت

دا اول مقام د فضل — دغہ بل لہ توفیقت

هدایت سره اول دے — دا دویم پہ عنایت

بل پہ کسب پیدا کیگی — عملی کیفی قربت

پہ سجدو پہ نوافلو — پہ قیام پہ رکوعت

پہ زکواۃ اؤ پہ روجو — هم پہ حج هم پہ وحدت

حسنات قرب امکانیدی — صالح نیت پہ هرساعت

دا پینځہ شرطونہ غواړی — یعنی قرب د امکانت

د امکان بود و مباش — دے لہ علمہ لہ قدرت

یو عطا د پاک مولاده — د غلامہ غلامیت

## ***** تبارك اسمہ ربك ذوالجلال والاکرمہ *****

لہ جملؤ شیرنیانو — دے شیرین نوم دالله

لہ کل واړه نمکیاتو — نمکین نوم دالله

لہ همہ ؤ تحفہ جاتو — برترین نوم دالله

لہ الذو لذیذاتو — خوشترین نوم دالله

لہ دے ټولو سائغاتو — سایغین نوم دالله

لہ دے ټولو فتوحاتو — فاتحین نوم دالله

لہ هرقسمہ میوه جاتو — فاکهین نوم دالله

| | |
|---|---|
| لہ تمامو فایزاتو | فایزین نوم دالله |
| لہ سمک نہ ترسماکو | سائرین نوم دالله |
| پہ زړگی د ذاکرانو | بارقین نوم دالله |
| د نافی لہ عطریاتو | نفسین نوم دالله |
| لہ بهترو شارباتو | عسلین نوم دالله |
| د دے نور لہ شاعاتو | نائرین نوم دالله |
| د قمر لہ نایئراتو | نورین نوم دالله |
| د امکان لہ مکاناتو | لا مکین نوم دالله |
| هم د نورلہ تجلیاتو | جلوه گین نوم دالله |
| د ایمان لہ آماناتو | آمینین نوم دالله |
| د عروج لہ مقاماتو | عارجین نوم دالله |
| د رحمت لہ نزولاتو | نازلین نوم دالله |
| د خرقت لہ خارقاتو | خارقین نوم دالله |
| د کرم لہ کراماتو | کارمین نوم دالله |
| د ریحان لہ رائحاتو | رائحین نوم دالله |
| د گلاب لہ عطریاتو | عطرین نوم دالله |
| د امکان لہ تریاقاتو | شافئین نوم. دالله |
| د شاکر لہ شکریاتو | شاکرین نوم دالله |
| د حافظ لہ حافظاتو | حافظین نوم دالله |
| دسرهندلہ ارشاداتو | راشدین نوم دالله |

دسید پورلہ تعلیماتو بہترین نوم داللہ

د غلامہ لہ عاصیاتو غافرین نوم داللہ

***** کل یومہ ھو فی شان *****

غواړی زړه غمجن ځما نوے غزل نوے ساز

نوے غزل نوے سازغواړی زړه غمجن ځما

ځائے د نشیمن ځما ستا د زلفو تار دے

ستا د زلفو تار دے ځائے د نشیمن ځما

گل بشی چمن ځما ستا دیدار بهاردے

ستا دیدار بهاردے . گل بشی چمن ځما

زړه دے خیال جن ځما ستادوصالت پہ نور

ستادوصالت پہ نورزړه دے خیال جن ځما

سر بشی بے تن ځما ستاد جلالت پہ تیغ

ستاد جلالت پہ تیغ سر بشی بے تن ځما

نقشبندی بن ځما دے د سیدپوری فارم

دے د سیدپوری فارم نقشبندی بن ځما

پیرشیرین گفتن ځما کړی د غلامئ زبان

کړی د غلامئ زبان پیرشیرین گفتن ځما

## ***** وصل *****

تاله دے ناآشنا وطن څه ولے آشنا کړمه

تاله خپل آشنا وطن څه ولے ناشنا کړمه

څه وم دوحدت عقاب بیاشوم دکثرت غزاب

تا له دے آشنا صورت څه ولے ناشنا کړمه

ملک ووجبروت څما کاروو ملکوت څما

تا له دے آشنا روزگار څه ولے ناشنا کړمه

څما دلیونتوب گیله ستاد تواب توب صله

تا له دے آشنا وصاله څه ولے ناشنا کړمه

ساز وسوز دے ما خخه نازکرشمه تا خخه

تا له دے آشنا سروده څه ولے ناشنا کړمه

بیا به کله راشمه له تا سره به ستا شمه

تا د دے آشنا راتلو څه ولے ناشنا کړمه

ما چه د قالوا بلی له شوقه وکړه داصدا

تا له دے آشنا صدا څه ولے ناشنا کړمه

کارڅما جهلت ظلمت کاردے ستارحمت عفت

تا له دے آشنا دستوره څه ولے ناشنا کړمه

غلامه نقشبندی یمه مرید د سرهندی یمه

تا له دے آشنا غلامئ څه ولے ناشنا کړمه

### ***** غلبہ ھوا *****

بارے بیا شوہ زمانہ پہ انقلاب
قابو نہ شہ دا ځما مزاج خراب
مغلوبہ چہ تصور د تصبرشی
د ھوا شرر کړی پورتہ التھاب
آرزومند یم پہ جلوہ ستا د دیدار
خو پیدا شہ لہ حیرتہ اضطاب
غلامی بہ د غلامہ پہ مخہ درومی
راغے راغے د مولا د غم سیلاب

### ***** حیرت حسن *****

د مکان حسن لہ ما دے کہ لہ تا
نہ پوھیګم چہ لہ چا نہ دہ غوغا
لہ لیلے اول مجنون غرض د چادے
ګرفتار شوم د حیرت پہ ابتلاء
پہ صورت کښ دلالت د حقیقت دے
ھر دلیل وی خپل منزل وتہ رسا
د مکان دے لامکان سرہ پیوند
لکہ اسم جدا نوی لہ مسما

د ثمر اؤ د شجر نامہ یکسان وی
ولے رنگ خواص افعال لری جدا
هرصورت اؤ هرقوت چہ د امکان دے
حقیقت کښں لہ قدرت نہ دے عطا
غلامی د غلامانو میراث نہ وی
هدایت اؤ عنایت شی د مولا

## ***** وحدت شهود *****

تہ لا ما تہ وائے ما
څہ لا تا تہ وایم تا
والله لرے لرے کار دے
څہ جدا یم تہ جدا
هغہ وخت بہ د کمال وی
چہ تہ ما شے څہ شم تا
دحیرت مقام حرمت دے
دلبرئ کښں د هر چا
پہ خدمت کښں د غلام
وی رضا د خپل مولا

## ***** د خودئ فنا *****

څہ چہ ځان تہ وایم ځان پہ ځان شرمیګم
ځان ځانی د کثرت زیان دے برملا
عاشقان لہ خپلہ ځانہ خبر نہ وی
تصور چہ غلبہ شی د آشنا

د مکان وجود پہ مخ د لامکان کښ
لکہ لات دے یا منات دے یا عزا
د طالب وی پہ مطلوب پسے رفتار
د منزل پہ سختئ نہ لری پرواہ
ھر تکلیف ورتہ فنا وی پہ مطلوب کښ
د مطلوب وجود ته خیال سرہ بقا

## ***** تغافل قلبی *****

ھر عاشق چہ لہ معشوقہ وی غافل
غافل نہ دے دلبرئ کښ دے غافل
چہ قدم د ماورا پہ مقام بند شی
مسافر د دلبرئ بہ وی جاھل
روزانہ نوے رفتار نوے منزل دے
پہ یو حال بہ گذارہ وی د کامل
شناور دمعرفت دریاب کښ لامبی
مدعی د لامبو ناست وی پہ ساحل
امتحان د عقشقانو سر بازی دہ
د صادق وی پہ طلب کښ سرگائل
پہ سینہ کښ زړہ د ھرچا خلوتی دے
خو مقام د زړہ بہ رانشی حاصل

چہ زړه بند شی پہ صفت اسم یاذات کښې
دا مقام د زړه مقام شہ بے حائل

کہ مادون پورے بندی شہ یون د زړه
بت پرست د زمانے دے هر شاغل

کہ قدم پہ وړاندے واخلی لہ امکانہ
د غلامہ پہ غلامئ بہ شم قائل

## ***** د توحید زبان *****

د توحید زبان جاری لره پہ قام کښې
ذوالفقاردے بندی نہ وی پہ نیام کښې

چہ توحید اؤ معارف پرے بیانیگی
فصاحت د وی پیدا هغہ کلام کښې

آراستہ چہ پہ توحید سره محفل وی
لوئ دولت لوئ علمیت دے پہ اسلام کښې

د دنیا پہ لذائذو کښې لذیذ هم
د توحید بیان شرین دے خاص و عام کښې

دا ځما د زړه سودا شوه الغیاث
یا لہ تا نہ لیونتوب دے پہ مقام کښې

خلاصہ د دواړو کونو چہ توحید دے
سرمایہ دے د ایمان وی پہ غلام کښې

## ***** توحید بالواسطہ *****

ځہ چہ ګورمہ امکان تہ یو حالت دے
نمائش د جلالت د جمالت دے
ګذاره د ماورا خوف و رجا ده
کہ ملك آدم کہ جن کہ حیوانت دے
پہ چا خوف وی دخپل سرخوک پہ آمان وی
د مکان پہ یار اغیار کښ عداوت دے
کلہ دوست کلہ دښمن دښمن شی دوست
پہ خاصہ د طبیعت کښ شرارت دے
کلہ ګرم پہ ګرمئ دماغ د سرشی
کلہ نرم پہ نرمئ کښ مقالت دے
کلہ دوه یاران پہ مینہ نہ مړیګی
کلہ سر دیو اؤ بل پہ قتالت دے
کہ خراب دے د غلامہ مزاج لہ وختہ
خو امید ئے د مولا نہ عافیت دے

## ***** مقصود د حیات عالم *****

روح م بیداریګی تل د لا پہ ترانو سره
منزل تہ روانیګی د الا پہ اشارو سره

دلا نہ پہ لاخلاص شوم الاکبر خاص الخاص شوم

لہ ھو نہ الاھو شوم د توحید پہ نشانو سرہ

ځہ شودتوحیدیاران ځہ شودتمجیدخواھان

پیچ وتاب پہ مخ دیار زلفے پہ شانو سرہ

لا دے د نیستئ نظام الا دے دھستئ مقام

پہ منځ دلا الہ الاکبر دے امکان لہ حیرانوسرہ

لا معنی ظاھر وہ مخ د یار نائر نہ وہ

عکس توحیدی شہ دا مخلوق پہ الاھو سرہ

لا دے دکثرت عدم الا دے د وحدت قدم

محمد رسول اللہ تعارف دے ایصالو سرہ

وحدت دپہ کثرت کبر دے کثرت دپہ وحدت کبر دے

جشن توحیدی دے د کثرت پہ نغارو سرہ

رنګ دګہرنګوال مولارنګ دے دتوحیدتمام

خلاص لہ دورنګئ نہ شہ ستا پہ نندارو سرہ

## ***** مرګ و حیات *****

| | |
|---|---|
| قدرت علم ځما کوردے | ارادے کہرمہ بے کور |
| احدیت م سکونت وو | پہ کثرت شومہ مجہور |
| اوس م بیاغواړے خپل کورتہ | ارادے پورتہ کہ شور |
| دا پہ ما وشوہ د چا | تلو راتلو کبر یم مجبور |
| د کثرت پہ نندارو کبر | ځمائ دہ ځما ګور |

د توحید پہ نظارہ کښې ځمائ ده عار پیغور
ځہ چہ ځہ وایمہ ځان تہ سرلہ شرمکړم نسکور
ځمائ د ځما دروحی پہ کرم مے کړہ مصبور
پہ رحلت چہ روح ځماشی پہ رحمت ئے کہ منظور
ستاژوندون دے ځما ژوند ځما ژوند مړے د ګور
دغہ شمس سیدپوری کړہ د غلامہ د سترګو تور

## ***** لا الہ الا اللہ *****

د توحید اؤ د کثرت علاقہ خیال کہ
چہ لہ ذات سرہ نہ یو دے نہ جدا
لکہ ګل چہ وی پہ ښاخ پورے پیوند
نہ ګل ښاخ وی نہ لہ ښاخہ وی جدا
تر ګل بوټی د ګلاب وجود موقوف دے
زیب زینت د ګل لہ ښاخہ وی پیدا
کیف د ګل وی پہ ګل بوټی کښې مستور
خو چہ ګل د ښاخ پہ تن کښې وی فنا
چہ قدرت ئے د ظهور ارادہ وکړی
پہ مشیت ئے کړی رنګین اؤ مجلا

جلوه گرپه باغ او راغ شی ددے دهر
نا پیدا شی یو څو ورځو له پیدا

د توحید او د کثرت دغه مثال دے
دا عالم لکه د ګل به شی فنا

لکه ښاخ به وی قائم ذات د قدیم
د بهار مثال قدرت دے په هر چا

دغه یو طرف قائم بل شه نابود
ګل فنا شه د ګل بوټی د بقا

دا د ګل طرف مخلوق دے په مثال کښ
دا د ښاخ طرف امری غوندے ګویا

د خالق مظهر وجود دے د مخلوق
چه وحدت دے په کثرت کښ قدیرا

***** مقامات *****

دا اول مقام اثر دے د فیضان
چه په نقش زړه رنګین کړی ذاکران

دویم مقام دے د انوارو په زړه باندے
چه په ذکر زړه ذاکر شی هرزمان

اطمینان له دے جریان نه پیداکیګی
چه پرے ورک شی د غفلت نام و نشان

دا درئم مقام نزول دے یا عروج
چہ پوهيګی پرے د فهم ناظران
څلورم مقام نظر دے په ځان باندے
چہ غائب يم که حاضريم دا زمان
دا پنځم مقام دوام د شهادت دے
نظر فكر د صفاتو په عنوان
انتها د معرفت مقام د وصل
د صفاتو فكر خيال دے هرزمان
تصور به د صفاتو كړی په ذات
چہ لازم له ذات حق نه دے هرتوان
اثری طرف كښ كيف دے د صفاتو
آمری طرف كښ كيف نه لری شان
د تكوين هر دارمدار چہ جلوه ګرشی
حقيقت شی ارادت كښ نمايان
يعنی بے ارادے هيڅ نشی ايجاد
په ايجاد كښ ارادے سره فرمان
مدام نوے نوے كار نوے روزګاردے
يعنی خدائے ' كل يوم هو فی شان '

هر هغه چه د قدرت په اندازه دی
هر ممکن ئے له ادراکه دے ناتوان

هر یو اسم په هر شی کښ د دارینو
لری خپل اثری شان په خه عنوان

جلالت د جلالی اسم اثر دے
جمالت د جمالی اسم نشان

دا سفلی علم د خلق دے که علوی
سراسر دے د اسمآءٔ په فرمان

په هر شی کښ د هراسم تربیت دے
حقیقت ئے له خاصے دے نمایان

که نصیب شی دغلام توفیق له خدایه
و حسن افعال خواص به کړی بیان

## پشتو

# منظوم کلام

شیخ المشائخ

جامع شریعت وطریقت

قطب الاقطاب ولی کامل

## حضرت مولانا غلام ربانیؒ

نقشبندی مجدّدی سیدپوری

## ***** د مونځ ترجمہ *****

### نیت د مانځہ د سحر

نیت م کړ دے دوه رکعتہ مونځ کوم

سنت موکده د سحر مونځ کوم

خاص خدائے د پاره د دے وقت سحر

مخ م پہ کعبہ کړه الله اکبر

نیت م کړدے دوه رکعتہ مونځ کوم

فرض قطعی د سحر مونځ کوم

خاص خدائے د پاره د دے وقت سحر

مخ م پہ کعبہ کړه الله اکبر

## ***** نیت د ماسپخین د مانځہ *****

نیت م چہ څلور رکعتہ مونځ کوم

سنت د ماسپخین موکده مونځ کوم

خاص د خدائے دپاره د دماسپخین

مخ چہ کعبہ لوئ دے خدائے رب الامین

نیت م چہ څلور رکعتہ مونځ کوم

فرض د ماسپخین قطعی مونځ کوم

خاص د خدائے دپاره د دماسپخین

مخ چہ کعبہ لوئ دے خدائ رب الامین

نیت م کړدے دوه رکعتہ مونځ کوم

سنت د ماسپخین موءکده مونځ کوم

***** نیت د مانځه د مازیګر *****

نیت م کړ دے مونځ څهار ګانه کوم

فرض د مازیګر علانیه کوم

مخ کوم کعبے ته تکبیر وایمه

یو دے خدائے تکبیر سره یے ستا یمه

***** نیت د مانځه د ماښام *****

نیت م کړدے درے رکعته مونځ کوم

فرض د دے ماښام قطعی مونځ کوم

نیت م کړدے دوه رکعته مونځ کوم

سنت موءکده د ماښام مونځ کوم

مخ په کعبه خاص رضا د خدائے لره

الله اکبر حضور په ځاے لره

***** نیت د مانځه د ماسخوتن *****

نیت م کړدے کړم څلور رکعته مونځ

فرض د ماسخوتن څلور رکعته مونځ

مخ م د کعبے په طرف خدائے لره

الله اکبر لوئ د خدائے لره

نیت م کړدے دوه رکعته مونځ کوم

سنت د ماسخوتن موءکد مونځ کوم

نیت م کړدے درے رکعتہ. مونځ کوم

وتر واجب خدائے لره دا مونځ کوم

مخ م د کعبے پہ لوری خدائے لره

الله اکبر عبادت خدائے لره

سبحنك اللهم وبحمدك

ډیره پاکی ستاده اے باری خدا

ټولہ ثنا ستا ده اے هادی خدا

وتبارك اسمك وتعالی جدك ولا الہ غیرك

نوم دَ مبارک دے لوئ د شان دے

نشتہ بل معبود واحد د شان دے

اعوذباالله من الشطان الرجیمہ

غواړمہ فنا ځہ پہ رب الاکریمہ

خدایا ما ساتہ لہ شیطان الرجیمہ

بسمہ الله الرحمن الرحیمہ

ستا پہ نوم شروع کوم رحمن ئے تہ

هم رحیم کریم رب المنان ئے تہ

الحمد لله رب العالمین

هر قسم ثنا ده خاص الله لره
پالونکے د جملہ جهان الله لره

الرحمن الرحیم

یعنی چہ بخونکے مهربان دے
ټول عالم تہ دے روزی رسان دے

ما لك یوم الدین

ورځے د قیامت لہ دے واکدار دے
هم لہ خیر اؤ شر تہ خبردار دے

ایاك نعبد

مونږه کوو خاص عبادت تالره
نشتہ عبادت کښې شریک تالره
خاص پہ یکتائ سره یکتا ئے تہ
حق پہ مولائے سره مولا ئے تہ

و ایاك نستعین

یعنی خاص لہ تانہ مدد غواړمہ
بے لہ تانہ بل چاتہ نہ جاړمہ

اهدنا الصراط المستقیم

بوځہ مونږ پہ لارے د حضرت نبی
لاد توحید خایہ پہ سنت قوی

لار برابر خاپہ خپل دلبار تہ
زړه م هوسيګي ستا ديدار تہ
زړه م د ديدار پہ تمنا کښې دے
خيال م ياره ستا پہ تولی کښې دے

صراط الذين انعمت عليهم

لار د هغہ چا چہ پہ رحمت کښې دي
تا پہ فضل کړدے پہ نعمت کښې دي
اولياؑ چہ صالحان دی انبياؑ
زاهدان چہ عارفان دی اتقياؑ

غيرالمغضوب عليهم

لار د ګمراهئ مہ خاپہ مونږه لہ
کار د شقاوت مہ سپاره مونږه لہ
کافران چہ فاسقان دی فاجران
مفسدان دی ګمراهان دی غافلان

ولا الضآلين

هغہ چہ منکر دی لہ توحيده نہ
کارکښې بے پروا دی لہ تنقيده نہ

آمين

دا دعا قبوله کړه له مونږه نه
دا زاری منظوره کړه له مونږه نه
ورځ د لوئ اختر دے دا ناقص غلام
عفوه که یا والئے جمله نظام

قل هوا لله احد

وایه په جواب کښ مشرکانو ته
اے نبی د وخت منافقانو ته
هغه چه الله دے یو معبود دے
بے شریکه واجب الوجود دے

الله الصمد

بے وزیره بے نزیره بے حجت
خدائے پورے موقوف دے دهرچا حجت

لم یلد و لم یولد

بے مثاله ذات له چا پیدا نه دے
دا رنګه له ده نه څوک پیدا نه دے
دے نه د چا مور نه د چاپلار دے
بے حجته دے له مور اؤ پلاردے
دے له مور اؤ پلاره بے پروا دے
نه چه څوک له ده څنے پیدا دے
مطلق یو ذات دے په ایقان کښ

چون اؤ چند نہ لری بیان کبس

ولمہ یکن لہ کفوا احد

قام قبیلہ نشتہ خوک مولا لره

یو حسب نسب نشتہ اعلی لره

بے نسبہ بے حسبہ ذات دے

هرسعت موصوف پہ نیک صفات دے

دے نہ عربی نہ عجمی دے خوک

نہ چہ دے ترکی یا رومی دے خوک

التحیات لله

هر یو زبانی عبادت خدائے لره

هرے زمانے کبس خاص دے خدائے لره

نشتے عبادت کبس حصہ چا لره

نشتے پیغمبر نہ اولیاؑ لره

## *****مثال*****

دوه خاونده نہ وی د یوے خځے

یو خاوند لہ بنائ درے خلور خځے

خدائے خو هغہ بس دے چہ یکتا وی تل

هم لہ ماورا نہ بے پروا وی تل

والصلوات

بل خو عبادت د بدن خاص دے

مونځ روژه حج خدائے لہ خاص الخاص دے

هیڅ مخلوق پہ دے کښں څوک شریک نہ دی

شان د الاهی کښں څوک شریک نہ دی

والطیبات

هر قسم طاعت اؤ مال بندہ گی

خدائے لہ دہ لائق مال بندہ گی

هغہ صفتونہ چہ دی خدائے لرہ

مگنړہ هرگز چرے بل چا لرہ

یو خالق کافی دے ټول مخلوق لرہ

دوہ معبودہ نہ نشی یو مخلوق لرہ

دوہ پہ دو رنگئ سرہ رضا نشی

.یو پہ یو رنگئ کښں نارضا نشی

زړہ د غلام تنگ لہ مشرکانو شہ

هم لہ دے نا اهلہ معبودانو شہ

السلام علیك ایهاالنبی ورحمتہ الله وبرکاتہ

اے نبی پہ تا د وی لہ ما سلام

رحم د باری برکت شامدام

السلام علینا وعلی عبادالله الصالحین

رحم د رحمن سلام د وی په مونږ
هم په صالحانو د ټولی ځمونږ

اشهدان لا اله الا الله

وایم شهادت چه خدائ معبود دے
بے له خدایه هر معبود مردود دے

واشهد ان محمد عبده ورسوله

هم شهادت کړم چه محمد نبی
خاص بنده استادئے د مولا غنی
هر عبادت بنائ په دستور د ده
نشتے عبادت کښ حق منظور د ده
دے بنده د خدائے دے بندګی کوی
مونږ ته داب دستور د بندګئ خائ
دارنګه هستی چه طاقت نه لری
هیڅ خداوندئ کښ دخلت نه لری
بل وی لا څوک مشکل کشا د تا
خلاص چه کړی له رنځه له بلا نه تا

اللهم صل علی محمد

وعلی ال محمد

ډیر د وی درود په محمد نبی

یا خدایا پہ آل د محمد نبی

کما صلیت علی ابراهیم

وعلی ال ابراهیم

دارنگہ درود لکہ ویئل دے تا

آل اؤ ابراهیم دواړه سائل دے تا

انك حمید مجید

اے خدایا بے شکہ شان دے ستا حمید

اچت لہ اندازے نہ دے شان مجید

اللهم بارك علی محمد

وعلی ال محمد

یا خدایا رحمت برکت ستا د وی

اے پہ محمد اؤ آل صفا د وی

کما بارکت علی ابراهیم

وعلی ال ابراهیم

داسے لکہ تا پہ ابراهیم نبی

کړ دی هم پہ آل د ابراهیم نبی

ډیر برکتونہ رحمتونہ دی

ډیر لوئ احسانونہ نعمتونہ دی

انك حمید مجید

بے شکہ حمید پہ هر لسان ئے تہ

ډیر بزرګ اؤ لوئ په هر زمان ئے ته

اللهم ربنا اتنا فی الدنیا حسنة

وفی الاخیرة حسنة

راکه په دنیا کښ نیکی مونږ لره

خدایا په عقبا کښ نیکی مونږ لره

وقنا عذاب النار

مونږه په آمان کړه له عذابه نه

یا خدایا د اور له تاؤ تابه نه

السلام علیکم ورحمة الله

له ما د وی سلام په تاسو باربار

هم رحمت د خدائے په تاسو بار بار

اللهم انت االسلام

یا خدایا ته روغ ئے له هر عیبه نه

پاك ئے له هر نقص له هرریبه نه

ومنك االسلام

خاص ستا له درګاه نه دے خیر تمام

ستا له فضله زحم دے هر یو نظام

تبارکت یا ذاالجلال والاکرام

ډیر ئے مبارک جلالت شان لرے

صاحب الاکرام کمالی توان لرے

استغفرالله استغفرالله استغفرالله

عفوه غواړم عفوه غواړم مغفرت

مغفرت با عاقبت له هر علت

## ***** دعا ئے قنوت *****

اللهم انا نستعينك ونستغفرك

يا خدا باری په تحقيق څه غريب

تا نه مدد غواړم اے نعم المجيب

غواړم مغفرت صفت غفور لرے

ډير ئے قدردان صفت شكور لرے

ونو٤من بك ونتوكل عليك

ستا په توحيد ما ايمان راوړے دے

هم تكيا توكل م په تا كړے دے

ونثنى عليك االخير ونشكرك

وايمه پتا ده نيكئ څه ثنا

يا الهى ستا په شكر يم گويا

ولا نكفرك و نخلع

نه يم بے فرمان ستا له فرمانه څه

تا ته شوم خالى له هر عنوانه څه

و نترك من يفجرك

پرے م خوہ دوستی د دوشمنانو ستا
نہ بہ کرم یاری د بد خواهانو ستا

اللهمہ اياك نعبد ولك نصلی ونسجد

باری خدا خاص عبادت ستا کوم
مونځ اؤ سجده هم لپاره ستا کوم
نشتے عبادت کبنں حصہ چا لره
نشتے پیربابا اؤ لوئ بابا لره
ہیر عالم کافر پہ دے روزگار شہ
خدائے رسول لہ ہیرونہ ویزار شہ

واليك نسعی

تاوتہ پہ منہو منہو راغلمہ
اقرار د بندگئ کومہ راغلمہ

ونخفد و نر جو رحمتك

ستا خدمت کوم امید لرم لتا
رحم کرہ پہ ما امید لرم لتا

و نخشی عذابك

ځہ یریگم ہیر ستا لہ عذابہ نہ
امن راکرہ تہ لہ خپل عذابہ نہ

ان عذابك بالكفار ملحق

ستا عذاب پیوست دے پہ کافر پورے
یعنی لہ توحید نہ پہ نافر پورے
امن م ایمان کہ لہ نقصانہ نہ
یعنی د مکرونو د شیطانہ نہ
دا د غلامۍ تحریر منظور کړه
بیائے پہ مغفرت سره مغفور کړه
وخت مازیگر ورځ لوئ اختر جولائ 1957

## ***** ایمان مفصل *****

آمنت با لله و ملئکتہ

ما ایمان راوړدے پہ واحد خدا
هم پہ ملائکو د پاك رب العلی

و کتبہ و رسلہ

ایمان پہ کتابونو آسمانی څما
هم پہ رسولانو سبحانی څما

والیوم الاخر والقدر خیره

وشره من الله تعالی

پہ ورځ د آخرت څما ایمان دے
انداز د خیر اؤ شر لہ رب منان دے

والبعث بعد الوت

یقین م په ژوندون دے پس له مرګه نه

خدائے څخه ورتلل دی پس له مرګه نه

***** ایمان مجمل *****

آمنت بالله کما هو باسمائه وصفاته

ایمان م د توحید دے په رب الغفار

څنګه چه په نیکو نامو نام دار

هر اسم شرعی څما ایمان دے

هر صفت کامل د خدائے شایان دے

وقبلت جمیع احکامه اقرار

باللسان وتصدیق بالقلب

ما د خدائے احکام واړه منلی دی

ما په ژبه زړه ربښتیا کنړلی دی

هر څه چه لازم دی خدائے یکتا سره

ټول دی ما منلی په ربښتیا سره

## ***** شپږ کلمے د اسلام *****

### اول کلمہ طیبہ

لا الہ الا الله محمد رسول الله

بے لہ خدایا نشتہ بل معبود څما
استاذ دے د خدائے نبی محمود څما
مقصود د زندګئ شہ الا الله څمونږ
دستور د بندګئ رسول الله څمونږ
یعنی لہ ممکن غرض توحید دے
کار د سنت سر بسر تنقید دے

## ***** دوئمہ کلمہ شهادت *****

اشهد ان لا الہ الا الله وحده لا شريك لہ

و اشهد ان محمد عبده و رسولہ

وایم شهادت څہ پہ توحید سره
هم پہ معبودیت د رب مجید سره
یو دے ذات اقدس چہ شرکت نہ لری
ذات صفت کښ یو دے شرکت نہ لری
کړمہ شهادت چہ محمد نبی
استاذ د مولا دے بنده ګی کوی

## ***** دریمہ کلمہ توحید *****

لا الہ الا اللہ وحدہ

نشتہ خوک معبود سوا لہ خدایا نہ
یو پہ ہر صفت کښں یے لہ خدایا نہ

لا شریک لہ

نشتے شریک دہ لہ پہ قدرت کښں خوک
ھم پہ تصرف د مملکت کښں خوک

لہ الملک و لہ الحمد

دے پہ مملکت کښں یکتا شان دے
دہ لرہ ثنا دہ ھم سبحان دے

یحیی و یمیت

دے ژوندے کونکے دے مردہ لرہ
دے مردہ کونکے دے زندہ لرہ

بیدہ الخیر

ھر څہ چہ کوی ھغے کښں خیر دے
خوک صفت د دہ صفت د خیر دے

وھو علی کل شیی قدیر

دے پہ ھر یو کار باندے قدرت لری
کولو نہ کولو کښں حکمت لری

## ***** څلورمہ کلمہ تمجید *****

سبحان اللہ و الحمد للہ

هر قسم پاکی ده پاک الله لره

هر قسم ثنا ده یو ا لله لره

ولا الہ الا الله والله اکبر

نشتہ څوک معبود سوا لہ خدایہ نہ

نشتہ څوک لویۍ کبر لوئ لہ خدایہ نہ

واړه خواروزار غریبانان دی

بے لہ خدایہ تول یتیمانان دی

العلی العظیمہ

خدائے ډیر مهربانہ عالی شان دے

والی ئے رحمت عظیم الشان دے

## ***** پنځمہ کلمہ استغفار *****

استغفرالله ربی من کل ذنب اذنبتہ

غواړم مغفرت لہ لویہ خدایہ نہ

هر گناه چہ کړه دے ما لہ ځانہ نہ

عمدا او خطاءً سرا او علانیة

هغه چه قصدی وی یا خطا سره
هغه چه څرګند وی یا په غلا سره

و اتوب الیه من ذنب الذی
اعلمه ومن ذنب الذی لا اعلمه

بیرته راځم خدائے ته له علمی ګناه
توبه توبه خدایه له جهلی ګناه

انك انت علام الغیوب و ستارالعیوب

ته ئے خبردار له هر یو غیبه نه
ته پرده پوشی کوے له عیبه نه

وغفار الذنوب

ستا صفت غفار ګناه بخونکے ئے
لار د هدایت مدام خو یونکے ئے

ولا حول ولا قوة الا با لله

ته چه ګرځوے له بدئ ګرځو مونږ
ستا په توفیق هم په نیکئ غورځو مونږ

العلی العظیمه

ستا صفت دے لوئ عظیم قدرت لرے
هم په کړه ناکړه کښ خپل مشیت لرے

## ***** شپگمہ کلمہ رد کفر *****

اللھمہ انی اعوذبك من ان اشرك بك

غواړمہ فنا باری پہ تا سره

شرک چہ پیدا نہ کړمہ لتا سره

شی و انا اعلمہ بہ

داسے شے چہ ځہ پے خبردار یمہ

یا خو ځہ بالکل نا خبردار یمہ

یعنی عفوه وکړه پہ جهلت ځما

عفوه پہ غفران کړه معصیت ځما

تبت عنہ و تبر ئت

ده ځما توبہ لہ هر شرکتہ نہ

خلاص شومہ لہ کفره لہ شرکتہ نہ

والکذب والغیبة

ځہ شرمہ بیزاره لہ دروغو نہ

نہ بہ کړم غیبت لہ روغ ناروغو نہ

والبدعة والنمیمة

توبہ نہ کوم غیبت چرے

نہ بہ چغلی کړم نہ بدعت چرے

والفواحش والبهتان

نہ بہ کړم بهتان زنا لہ چا سره

یعنی د بدئ عمل بل چا سره

والمعاصی کلها واسلمت

لہ ټولولو گناهونو ده توبہ څما

نوے مسلمان شومہ توبہ څما

واقول لا الہ الا الله محمد رسول الله

وایمہ خدائے یو دے پہ تصدیق سره

استاذے محمد دے پہ توفیق سره

خوک چہ مخالف شی لہ رسولہ نہ

رد بئے عمل شی لہ قبولہ نہ

***** د روجے نیت *****

و بصومہ غد نویت من شهر رمضان

نیت د صبائئ روجے کومہ څہ

میاشت د رمضان روجہ کومہ څہ

***** د افطار نیت *****

اللهمہ انی لك صمت وبك آمنت

خدایہ څہ خاص تا لره صائم شومہ

ایمان لرمہ ستا پہ دین قائم شومہ

و عليك توكلت وعلى رزقك افطرت

کړمہ توکل پہ تا هر کار کښ
ستا رزق کافی گڼړم افطار کښ

***** نیت د جنازے *****

نویت ان او دی لله تعالی
اربعہ تکبیرات الصلوة الجنازة

نیت م کړ دے مونځ د جنازے کوم
خدائے لہ چهار تکبیر نیازے کوم

الثناءؑ لله تعالی والصلوة
للنبی والدعاءؑ لهذاالمیت

خدائے لره ثنا درود پہ مصطفی
کړم د دے مرده پہ حق کښ هم دعا

اقتدیت بهذاالامام متوجها
الی جهة الکعبة الشریفة

اقتدا پہ دے امام پسے کوم
مخ پہ کعبہ الله اکبر وایم

## ***** اول تکبیر *****

سبحانك اللهم وبحمدك

پاک ئے لہ نقصانہ تہ باری خدا

یاد ئے پہ ثنا سرہ کافی خدا

وتبارك اسمك وتعالى جدك .

نوم دے مبارک دے جلالت سرہ

ذات د مبارک دے لوئ شوکت سرہ

و جل ثناۓ ك

ستا ثنا خرگندہ لوئ عزت لرے

نشتہ بل معبود خو تہ وحدت لرے

ا الله اکبر

اے پہ صفت لویہ لوئ قدرت لرے

ہیر کرم لوئ شان د مغفرت لرے

## ***** الله اکبر دوئم تکبیر *****

اللهم صل على محمد وعلى ال محمد

یا خدایہ رحمت پہ محمد د وی

هم پہ آل اولاد د محمد د وی

كما صليت و سلمت

وبارکت رحمت وترحمت

داسے لکہ تا چہ رحمت کڑے دے

پیر سلام رحمت برکت کڑے دے

على ابراهيم وعلى ال ابراهيم

خاص پہ ابراهیم پہ آل د ده

تا چہ کرم کڑیدے پہ حال د ده

انك حميد مجيد

ستا ثنا صفت پہ هر لسان دے

ذات د لوئ بے کیفہ بے نقصان دے

***** الله اکبر دریم تکبیر *****

---

اللهم اغفر لحينا و ميتنا

یا الهی اوبخښہ جوندی څمونږ

عفوه کہ مولا د ګور بندی څمونږ

وشاهدنا و غائبنا وصغيرنا و كبيرنا

حاضران اؤ غائبان مغفور لره

لوئ واړه څمونږه تل مشکورلره

وذکرنا و انثا نا

عفوه پہ رحمت کہ مردانہ څمونږ

وکړه مغفرت پہ زنانہ څمونږ

اللهم من احییتہ منا فاحیہ علی الاسلام

تہ چہ ایراده لہ مونږ ژوندون کے

ژوند څمونږ اسلام سره میمون کے

ومن توفیتہ منا فتو فہ علی الایمان

روح چہ تہ لہ مونږه قبضہ وے د چا

ختمہ خاتمہ کہ پہ ایمان څما

***** الله اکبر څلورم تکبیر*****

اسلام علیکم ورحمة الله

اسلام علیکم ورحمة الله

څما د وی سلام پہ تاسو بار بار

هم رحمت د خدائے پہ تاسو بار بار

***** دعا د جنازے د هلک نابالغ *****

اللهم اجعلہ لنا فرطا

دا هلک قیامت کښ خدایا مونږ لره

ډیره خوشی وګرځوه مونږ لره

واجعلہ لنا اجرا و ذخرا

اجر د عقبی کړے مونږ د پاره دے

نیکہ ذخیره کړے مونږ د پاره دے

واجعلہ لنا شافعا و مشفعا

دے شفاعت کار څمونږ د پاره کہ

قبول ئے شفاعت څمونږ د پاره کہ

## ***** دعا د جنازے د جینئ نابالغے *****

اللهم اجعلها لنا فرطا و اجرا وذخرا

وګرځوه دا جینئ ښادی څمونږ

اجر ذخیره کړه خیر خواهی څمونږ

واجعلها لنا شافعة و مشفعة

دا جینئ څمونګ شفاعت داره کہ

منظور ئے شفاعت څمونګ د پاره کہ

## ***** نیت د تیمم *****

نویت ان اتیمم لرفع الحدث

و لا صطباحة الصلوة

قصد م دے پہ خاورو طهارت کوم

مونځ د پاره کار د اباحت کوم

***** لرفع الجنابة *****

نيت م دے په خاورو طهارت کوم
پاکه ناپاکی د جنابت کوم

***** لمسح المصحف *****

نيت کوم په خاورو پاکومه ځان
مسح د قرآن روا کوم په ځان

***** مطلق تيممه *****

دوه ضربه تيمم وهم پاکئ لره
دا علاج شرعی دے ناچارئ لره

***** تيممه د مرده د غسل *****

نيت م کړ دے غسل د مرده کوم
مخ لاس ئے په خاورو آلوده کوم

***** مسله د غسل *****

مړ که نارينه شه په تقدير سره
نه وو نارينه چرے تطهير سره
ښځه به تيمم په پټ مخئ کوی
ده له به تدبير د اودسئ کوی

دا رنگہ کہ خځہ وی مردہ چرے
خځے پیدا نہ شوے پہ موقع چرے
دے لہ بہ تیمم خو نارینہ وهی
پھے دواړه سترگے نابینہ وهی
دا هلہ چہ نہ وی خوک محرم ددے
بیرتہ سترگے بویہ د محرم د دے
خځہ خاوند دواړه خو یو بل لره
غسل ورکولے شی یو بل لره
لاس بہ نامحرم پہ کپړه پټ لری
ضرب د تیمم پہ لا سو پټ کوی
بے خلافہ خځہ د خاوند غسل
خلاف دے پہ خاوند د زوجے غسل
غسل د معنی غواړی ناقص غلام
ستا لہ فضلہ رحمہ یا رب السلام

**** لکی ختم سره ایمان بیرتہ نہ راځی **** (100000)

لکی ختم کہ خوک کاندی هر زمان
ډیر ثواب دے چہ مردہ تہ شی رسان
ولے تلے ایمان بیرتہ نہ جاروزی
دا فاسدہ عقیدہ چہ کړی ختمیان

بے عزتی پکښ لازمہ د مردہ دہ
چہ مسلم باندے لازم شی بد گمان
العیاذ کہ ایمان بائلے وی دے مړی
د بائلنے ئے راتہ وښایہ نشان
فرض دا کہ ستا پہ ختم شی واپس فنا
څہ ئے نښہ څہ دلیل څہ ئے نشان
بلہ دا کہ ایمان لاړ مړے کافر دے
پہ کافر د جنازے دے څہ فرمان
دغہ سقاط دغہ فدیہ دغہ خیرات
فائدہ نکړی واړہ دے مالی نقصان
سقاط فدیہ خو جبیرہ دہ د گناہ
هسے نہ چہ جبیرہ دہ د کفران
پہ تګئ کښ ملا ما چوہ مخلوق
څہ دلیل خو راپیدا کہ د قرآن

دا خلور واړه مذهب چه برحق دی
پکښ وخایه د دے عمل بیان
یعنی دا چه ایمان بیرته راجاروزی
په ختمونو په لوستلو د قرآن
ستا په قول که دا مړے وی بیمانه
اول ختم کړه چه رائے شی ایمان
پس له هغے جنازه ورلره بویه
مشرف چه په شرف شی د ایمان
جنازے لره پتا باندے تادی وی
فرق نکړے چه مومن دے که بے ایمان
له کفن دفن نه پسته منزرے شوے
لکی ختم له راغواړے ملایان
څه شے تل وی څه شے راغے ماته خایه
چه منظور شی عقیده کښ ستا بیان
ته ایمان ایمان کوے ایمان څه شے دے
حقیقت کړه د ایمان راته عیان
که اقرار تصدیق ته وائے دا ارکان دی
د ارکانو مرکب کړه نما یان

کہ تہ خدائے رسول تہ وائے چہ ایمان دے
خدائے ماشوم غوندے بہ خنگہ شی پشیمان

پہ تقدیر کښ چہ بیزارہ شی مولا
خاتمہ پہ بے دینئ بہ شی ختمان

دا تقدیر بہ پہ تدبیر خرنگ بدل شی
چہ بدل شی پہ اسلام سرہ کفران

د ثواب پہ نیت پہ نیک گمان عمل کړہ
تقدیر واړہ حوالہ کړہ د منان

تلہ راتلہ د ایمان مکړہ عقیدہ خپل
خاتمہ باندے عالمہ دي حق رحمان

دا قرآن تسبیح تہلیل پہ گیډہ مخورہ
خدائے رازق دے د زمین اؤ د زمان

د رواج د ملائے نہ آمان غواړی
خوار غلامہ د غلامئ کوی فغان

***** دور د قرآن رواج دے *****

ملا سترے کړمہ ستا دور د قرآن
چہ د فرض کہ پہ ځان هم پہ جهان

د خدائے د فرضو نہ زایگم خوشحالیگم
ولے ستا پہ فرضو ډیر شوم پریشان

د مسکین په حق د مال په طور که وائے
ورکول فدیه روا دی د قرآن
ولی نن پرون رواج دے مذهب نه دے
مغفرت گنړل په دور د قرآن
که رښتیا وائم دهوکه دغه بازی ده
اقاله چه پس له دوره کړے قرآن
له درئم دورنه پس مال اؤ قرآن
قبلوی اکثر د کلی امامان
مقتدی ته وائ ځه ځما وکیل ئے
تقسیم وکړه د دے مال په څه عنوان
دا خیرات شه د ملا که ستا د مړی
فکر وکړه رواجی په خپل گریوان
د چا مال وو چاخیرات کړه ځان د پاره
پوه نشوے ته په سود اؤ په نقصان
دا د سلو قبول شوے مال د یو شه
یعنی وکړه دے ملا خیرات په ځان
بے له دوره چه تقسیم شی مال فدیه شی
خود ثواب بئے مرده ته شی رسان

ولی ستا په نیت اول ملا خبر دے
چه غرض د خپل ناموس دے خپل عنوان
ځکه ستا په حق کښ دے نه وائ حق
چه په حق باندے ته نکوے گذران
حقیقت خو د قرآن دے اطاعت
په کولو نه کولو دے فرمان
داسے نه چه د قسم گړی د پاره
په خپل کور کښ تا ساتلے وی قرآن
دا لابله بے باکی د مسلمان ده
چه قرآن لاندے تیر باشی لشکریان
د قرآن نه مخالف لشکر افسر وی
بیا لا غواړے د قرآن په مخ آمان
چا خودلے دا دستور دغه تدبیر دے
چه شه ستا د عقیدے د پاره زیان
د مسلم خانه جنگی چرته روا ده
راشه وګوره حکمونه د قرآن
د قرآن له بے باکۍ نه خوار غلام
امن غواړی په هادی رب المنان

## ***** وما اتا کمہ الرسول فخذوہ *****

پہ رواج سرہ کہ خیر وی کہ خیرات
سرمایہ وی قربانی وی کہ زکواۃ
لہ سنتہ مخالف بہ تل خائف وی
نہ ئے اجر پہ عقبا شتے نہ نجات
پہ خیرات کښې چہ غرض جائے بندی وی
خیرات نہ دے حسابیگی لہ دعوات
هغہ نذر چہ مصرف کښې نہ صرفیگی
خسارہ د آخرت دہ بے شبهات
تر جمعے تر ځلویښتمے چہ موقوف شی
بے حجتہ وقتی شی رواجات
د خپل رسم د رواج تابع داران
شرمندہ بہ پہ عقبا وی نارمات
د اتمے یولسمے څہ طاقت دے
یعنی نشتہ پکښې نفع نقصانات
د قدرت پہ پنجہ کل واړہ بندی دے
کہ ایام کہ لیالی دے کہ اوقات

کہ پہ نذر کښې خوک یاد کړی باباګان
ادا نہ لری د هغې واجبات
هم خوراک ئې دے حرام پہ څهار مذهب
متفق دی پکښې واړه امامات
چہ اهلال د غیرالله پہ کوم شی وشی
اکل شرب ئےشی حرام پہ مسلمات
د ثواب طمع ترے هم کفر باطن دے
چہ کتاب کښې موندے شی ئے اثبات
د آړے د یولسمے خاوندان
مشرکان دی کړی بې ځایہ عبادات
پنځہ حقہ پہ آړه کښې ضائع کیګی
د دهقان هنګر زرګر حجام زکواة
مشرکان نامی مسلم پہ شرک نازیګی
پہ عقبا کښې ورلہ نشتہ درجات
د لوئ پیر کړهی روټئ ایمان خواری ده
ورسره دے پہ آخر کښې تعذیبات
خوک چہ ځان لہ خدایہ نشی خلاصہ ولے
بل بہ څہ رنګہ کړی خلاص لہ نقصانات

چہ پہ نفعے پہ ضرر خپل قادر نہ وی
نہ بہ بل چا نہ څہ کم کړی نہ بہ زیات

چہ پہ قبر کښ بندی وی نہ خلاصیګی
څہ بہ ورکړی وہ بل چا وتہ نجات

کرامت بہ د ھغہ ولی منظور وی
چہ لہ شرع ھرګز نہ وی خلافات

کرامت فضل د خدائے نہ وایہ کیګی
چہ پہ لاس شی د بندہ خرق عادات

د ممکن نفع ضرر خاصہ د خدائے دہ
بے لہ اذن نہ ذرہ نکړی حرکات

خپلہ څہ ځوی دختر شی لہ مړ پاتے
څہ رنګ بل تہ بہ دے ورکړی فرزندات

دے لہ ځان نہ پہ بل چا پیر میئن نہ دے
انصاف وکړہ خود معلوم بہ شی نکات

نہ شرمیګے چہ لہ مړہ نہ حاجت غواړے
باور نہ کړے د مولا قوت حیات

راشہ مګدہ د مولا پہ فرش قدم نن
لہ بابا نہ ځان ، لہ غواړہ خرشیات

آب ونان خرچ اؤ خوراک د مولا پریږده
چہ معلوم شی پہ ساعت کښ بابا جات
د یو خدائے پہ زور قوت گذاره بویہ
څہ حاجت دے لہ ممکن نہ سوالات
پہ توحید سره اول آخر خائستہ کہ
مسلمان شہ پریږده واړه شرکیات
پیدا کړے تہ مولا ئے کہ بابا
عدالت دے مسلمان لره سوغات
آتشین ابیات هیبت وائے غلامہ
گوش جان کہ چہ بیدار شی غافلات

***** اطیعو الرسول *****

صد افسوس دے د مسلم پہ انحطاط
د روا د ناروا پہ اختلاط
د رواج اؤ د سنت تمیز ئے نشتہ
بے پرواه دی لہ طفریطہ لہ افراط
طبیعت متابعت ورتہ یکسان دی
آگاه نہ شہ د سنت پہ احتیاط
هدایت اؤ ضلالت تہ نظر نکړی
روان نہ شہ یو قدم پہ سم صراط

دا خراب ژوندون بہ تل تر تلہ نوی
راه گذر بہ وی قدم پل د صراط
د غلامہ زړه د توحید پہ غم قلم شہ
الغیاث پہ مسلمان غیر محطاط

***** ولا تتبعو السبل الی الخ *****

دا عالمہ شہ پہ رواج باندے تاراج
چہ مذهب شہ پہ عوامو کښں رواج
د ضامن پہ کفریاتو دین خراب شہ
هر یو تار لکہ زینار دے د رواج
د هغو ایمان پہ خدائے پہ رسول نشتے
چہ یقین کوی پہ رسم پہ رواج
د واحد خدائے منت بویہ نذر بویہ
ابراهیمہ شہ بتان مات کړه د رواج
پہ واحد صفت موصوف دے کافی ذات
څہ حاجت دے د ممکن پہ احتجاج
دا کمزورے عقیده کمزور ایمان دے
بل څہ ندی خو عمل دے پہ رواج
دا غلام غواړی آمان پہ هر زمان
چہ بدعت نشی سنت کښں امتزاج

## ***** قصیده امالی *****

بسم الله الرحمن الرحیم

ډیر حمد ثنا ده خاص مولا لره

ډیر درود سلام دے مصطفی لره

هم په آل اصحابو د ټولی د ده

هم په اهل بیتو د ټولی د ده

ملیك مالك مولی الموالی

له وصف التمکن واتعالی

بادشاه د بادشاهانو دے مولا علم

ده له ده لوئ غالب په ټول علم

خاصه دتکبر ده خدائے کبیر لره

نشتے تکبر صفت حقیر لره

نشتے تکبر کښ غفرانی د چا

نشتے په شرکت کښ عفوانی د چا

یقول العبد فی بدء الامالی

لتوحید بنظم کالآلی

نظم د توحید لکه ګوهر وایم

اول د امالی کښ په هنر وایم

## پشتو

## منظوم کلام

شیخ المشائخ

جامع شریعت و طریقت

قطب الاقطاب ولی کامل

## حضرت مولانا غلام ربانی رح

نقشبندی مجدّدی سیدپوری

ده باباجی حضرت غلام ربانی رحمۃ اللہ تمام لوستنکو اوقدردانو تہ دا اپیل دے کہ چرے چاسخہ دہ باباجی کلام موجود ایی نو مونگ تہ ارسال کرے چہ مونگ ایی دویم ایڈیشن کبنں شایع کرو۔

صاحبزادہ ابوذر غفاری
ربانی منزل' E526/13 اکرم آباد
مدینہ کالونی' والٹن' لاہور کینٹ

یعنی بنده وائ په توحید سره
اول د امالی کښ په تنقید سره
علم توحید علم ایمان دے ضرور
لازم دی د توحید اؤ دایمان امور
انه خلق مولانا قدیم
وموصوف باوصاف الکمالی
معبود د ټول مخلوق دے یو الله قدیم
موصوف په لوئ کمال دے مولانا قدیم
نه لری نقصان په ذات صفات کښ
هر صفت کامل دے خپل سوغات کښ
هوالحی المدبر کل امر
هوالحق المقدر ذوالجلالی
دے ژوندے تدبیر د هر یو کار کوی
هیر بزرگ دے حق په انداز کار کوی
کار کښ دے مختاردے ایرادے سره
مشیت سره مختار دے ایجادے سره
یرید الخیر والشر القبیح
ولکن لیس یرضی بالمحالی

دے ایرده کونکے دے د خیر اؤ شر
رضا دے په نیکئ ولے خفه په شر
امر د نیکئ کوی رضا سره
منع له بدئ کوی منشا سره
علم ایرادی وو په بدئ څمونګ
قادر په اندازے وو د نیکئ څمونګ
لیک چه په ازل کښ وی بدی د چا
یا په اندازه کښ وی نیکی د چا
جدا جدا تیارے مظهرے شولے
جلاّل جماّل ناسوت کښ تماشے شولے
څرګندے په بدانو کښ بدے شولے
پیدا هم له نیکانو نه نیکے شولے
کار د مشیت تل وی له حکمت سره
راز د قدرت فاش وی په کثرت سره
صفات الله لیست عین ذات
ولا غیرا سوا لاذوا نفصالی
یو صفت له خدائے سره یکتا نه دے
دارنګه له ذات نه جدا نه دے

یو طرف د اسم مسی سره
بل طرف د اسم ماسوی سره
یو طرف امر ئے دے چہ کیف دے
بل طرف حلقے کبنں چہ باکیف دے

صفات الذات والافعال طرا
قدیمات مصونات الزوالی

ټول صفات ذاتی اؤ افعالی همہ
قدیم دے لہ زوالہ آمانی همہ

یسمی الله شیا لا کا شیا
و ذات عن جهات الست خالی

خدائے تہ شیے ویلی شے خوشے ندے
یعنی شپگ طرف غوندے څہ شے ندے

ولیس الاسمہ غیرا للمسمی
لدے اهل البصیرة خیر آلی

نومہ د شے لہ شے نہ څہ جدا نوی
شے هم د خپل نومہ نہ څہ جدا نوی
عین شے معلوم لہ علامے نہ شی
ذات د شے ظاهر لہ علامے نہ شی

وما ان جوهر ربی و جسم

ولا کل و بعض ذوالشتمالی

رب ځما جوهر جسم عنصر نہ دے

یو جزا امکان د دہ هم سرنہ دے

لہ یو نہ دوہ کیدے نشی جوهر ذرہ

یو دے پہ معنی کښ خود جوهر ذرہ

جسم مرکب شی لہ جوهر ذری

جسم شے هلہ چہ شی پیوند ذری

وما ان صورة ربی و عرض

تعالی‌الله عما فی الخیالی

رب ځما صورت ندے څہ عرض ندے

پورتہ دے لہ خیالہ څہ عرض ندے

عرض قایم بالغیر دے پہ تدبیر سرہ

ذات د خدائے جوہر ندے پہ تصویر سرہ

جوہر چہ پہ تدبیر سرہ تصویر شی

موقوف پہ مصور پورے تصویر شی

دا مکان موقوف دے لا مکان پورے

کار غوندے موقوف دے پہ کاردان پورے

وما القرآن مخلوقا تعالی
کلام الرب عن جنس المقالی

دا قرآن مخلوق نہ دے هرگز چرے
کلام د رب لہ نشتے مثلیت چرے
بے مثالہ ذات کلام ئے بے مثال
خولہ کښې د مثال لری لفظے مثال

جمیع العلم فی القرآن لکن
تقاصر عنہ افہام الرجالی

ټول علوم اول آخیر قرآن کښې دی
لنډ ترینہ فکرونہ پہ بیان کښې دی
دا قرآن مظهر دے تکوینی علم
دارنګہ دفتر د تشریعی علم
علم سنت علم د قرآن دے
رسم بدعت خیر لدے قرآن دي
یعنی حقیقت د قرآن ګران دے
بے رسولہ بل چاتہ ډیر ګران دے
علم حکمت سر بسر قرآن دے
علم وحدت هو بهو قرآن دے

ورب العرش فوق العرش لکن

بلا وصف التمکن والتصالی

رب د عرش غالب دے په عرش برین

خنګه چه غالب دے په هر کهترین

بے له امکانی صفت قراره نه

بے له کیفه چونه بے له ثماره نه

استوا معنی لری تکمیل تمام

ختم د امکان دے په عرش نظام

وما التشبیه للرحمن وجها

فصن عن ذالک اصناف الاهالی

خومره خنګه نشتے هم خدا لره

هیڅ قسم له چا سره مولا لره

خیال له چون و چنده نه جدا لره

بے مثاله ذات سره سودا لره

هغه چه راتلے نشی په خیال کښ

دے علم ناسوت کښ یا مثال کښ

هغه ذات د خدائے واجب وجود دے

ټول علم له دے فقط معبود دے

وما یمضی علی‌الدیان وقت

و احوال و ازمان بحالی

نشته دے دوران د زمانے په ده

نه بد لیګی حال د زمانے په ده

ده باندے موسم د ګرمئ نشته دے

ده باندے موسم د یخنئ نشته دے

و مستغن الهی عن نساءٍ

و اولاد اناث او رجالی

خدائے چرے د خځو حاجت نه لری

هم پسر دختر ته حاجت نه لری

ټول علم پیدا دے ایرادے سره

یعنی یو مظهر دے ایرادے سره

رنګ پرنګ رنګونه چه عالم کښی دی

یا چه تصویرونه په عالم کښی دی

واړه د مشیت صفت مظهر ګنړه

قدیر صفت قدرت لره آثر ګنړه

کذا عن کل ذی عون و نصر

تفرد ذوالجلالة والمعالی

دارنګه له هر مدد نصرت نه
ذات جلالی پاک دے له علت نه
هیڅ مرض سختی علت دے نه لری
یو مشکل کلفت عوارض دے نه لری
یمیت الخق طرا ثمه یحیی
فیجزیهمه علی وفق الخصالی
پس له مرګه ټول علم ژوندے بشی
بدل د خپل عمل لره موندے بشی
نازونعمت عیش وعشرت نیک لره
تور مخونه ډیر عذاب نانیک لره
لاهل الخیر جنت و نعمی
و للکفار ادراك النکالی
اهل د نیکئ لره جنت به وی
اهل د بدئ لره دوزخ به وی
ولا یغنی الجحیمه ولاالجنان
ولا اهلو هما اهل النقالی
نه بشی پناه جنت دوزخ چرے
نه اهل د دوئ بشی رخصت چرے

تل به وی جنت کښ جنتی علم

تل به وی دوزخ کښ دوزخی علم

یراه المومنون بغیر کیف

وادراک وضرب من مثالی

دیدار به کړی مومن بغیر له کیفه نه

بے له ادراکئ مثالی کیفه نه

دیدار به د دلبر ځما جلوه وی تل

مخ به ئے بے مثله یو شغله وی تل

هیر به په لیدو شی ټول امکان ځما

بلند د وی مدام د بخت نشان ځما

تیر په دے ارمان بشی دوران ځما

ختم په ارمان بشی آوان ځما

رایشی په لاس دغه دلبر کله

عطا به په رحمت شی دا گوهر کله

فینسون النعیم اذا ارادو

فیا خسران اهل الا عتزالی

هیر بشی نعمت د جنت دوئ لره

دیدار چه ایرده شی چرته دوئ لره

سکر د توحید بشی سکر دیدار
دیدار تہ بہ دیار وی مدام انتظار
اهل د بدعت لره خسران دے
اهل د رواج لره لوئ زیان دے
اے رواجی پریږده د رسول خلاف
سنت د حضرت مګنړه هر ګز ګذاف
وما ان فعل اصلح ذوافتراض
علیالهادی المقدس ذی ارتعالی
هیڅ یو کار صالح پہ خدائے لازم ندے
نیکئ تل رسول پہ ده لازم ندے
لزوم پہ هغہ چا وی چہ محتاج وی
خپل پہ بود وباش کښ ډیر محتاج وی
مونږ باندے لازم دے اصلاحی خپلہ
یعنی پہ مسلم مسلمانی خپلہ
خدائے هادی ډیر پاک تعالی شان لری
مشیت قدرت کمالی توان لری
وفرض لازم تصدیق رسل
و املاك کرام با التوالی

فرض لازم تصدیق د رسولانو دے

هم د ملائکو احترام دے

نشتے شک کلام د انبیاؤ کښ

تصدیق دے په کلام د انبیاؤ کښ

سرکشی هر گز ملائک نکوی

حکم کښ تغیر اؤ تبدیل نکوی

و ختم الرسل بالصدر المعلے

نبی ها شمی ذی جمالی

ختم نبوت دے په احمد نبی

اے په صدر لوئ هشمی اجملی

پس له ده به نوی پیغمبر چرے

هم د کار د وحی نه خبر چرے

څوک چه کړی دعوه هغه کافر به وی

له دین اؤ ایمان نه نافر به وی

امام الانبیا بلا اختلاف

و تاج الاصفیاع بلا اختلاف

بے خلاف ایمان د انبیاؤ دے

بے خلافه تاج د اصفیاؤ دے

و باق شرعہ فی کل وقت

الی یومہ القیامة وارتحالی

باقی بہ شریعت وی پہ هر وقت د ده

قانون بہ د سنت وی تر قیامت د ده

هر څوک چہ راغب شی لہ سنتہ نہ

عمل بہ ئے شامل شی لہ بدعتہ نہ

عمل بہ ئے مولا څخہ قبول نوی

څوک چہ پہ دستور د پاک رسول نوی

لفظ د سنت لذت پیدا لری

لفظ د توحید عمل صفا لری

و حق امر معراج و صدق

ففیہ نص اخبار عوالی

امر د معراج دے حق رښتیا سره

ډیر دلائل دے کښ دی علیا سره

ناخبر حضرت وو لہ علوی علم

یعنی لہ هشتا هزار علوی علم

خدائے کړه خبردار لہ دے اطرافو نہ

هم د امکانی علم اکنافونہ

دا عقیده مکړه چه خدائے پورته دے
لامکانی یا د مکان لور ته دے
تا ته خدائے نیزدے له تا نه ډیر دے
قدرت د خدائے له تانه ګیر چاپیر دے
ته علم قدرت کښې بندیوان ئے تل
نحن اقرب لوستے په قرآن ئے تل

و ان الانبیا لفی امان
من العصیان عمدا والغزالی

امان دے انبیاؑ له هر عصیان نه
ندی بے فرمانه له فرمان نه
قصد سره دوئ نکړی کبائر چرے
نیت سره هم نکړی صغائر چرے
ذنب دے په معنی د خطائے سره
کاروی د خطا عفادارئ سره
هیڅ نبی معزول له نبوت ندے
دوئ سره هم سر څوک برابر ندے
ولی له ولایته معزولیګی تل
په کار د طغیانئے معلوله کیګی تل

وما کان النبی قط انثے
ولا عبد و شخص ذوافتعالی

یو نبی نہ ښځہ نہ مرئے وہ ښوک
نہ دروغجنی نہ چلبازے وہ ښوک
کار د نبوت وو پہ راستئ سرہ
نہ وہ پہ میتئ پہ سرکشئ سرہ

و ذوالقرنین لم یعرف نبیا
کذالقمان فاحذر عن جدالی

نہ وو سکندر حساب نبیانو کښں
نہ لقمان حکیم وو پہ نبیانو کښں
ھم ولایت مہ گڼرہ رتبہ د دوئ
رحم درود مکړہ پہ نامہ د دوئ
رحم پہ ولی درود نبی لرہ
خائ ھر مسلم تقی سنی لرہ
حق د دوئ کښں پریږدہ دا لفظی جدال
پیدا کړہ اندرون کښں د معنی کمال

و عیسی صوف یاتی ثم یتوی
لدجال شقی ذی خبالی

رابشی عیسی دجال بہ مړکړی زر
دا شقی بدکاره بہ خر پر کړی زر
یعنی لہ آسمانہ بہ نزول شی دے
یعنی د دجال پہ حق بہ نول شی دے

کرامت الولی بدار دنیا
لها کون فهم اهل النوالی

فضل د خدائے حق دے اولیا لره
شتے د کرامت ولی اتقا لره
فضل الهی مظهر ئے دے ولی
یعنی صورت کن بشی گفت ولی

ولم یفضل ولی قط دهرا
نبیا او رسولا فی انتحالی

هیڅ ولی بهتر لہ پیغمبر نہ دے
یو ولی همسر د پیغمبر نہ دے
ټول ولیان تابع د رسولانو دی
روان متابعت کښں د نبیانو دی

و للصدیق رجحان جلی
علی الاصحاب من غیراحتمالی

ډیر خو فضیلت صدیق اکبر لری

په ټولو اصحابانو د سرور لری

پس له انبیاؤ له ملائکو نه

غوره دے صدیق له خلایقو نه

وللفاروق رجحان و فضل

علی العثمان ذی النورین عالی

پس له صدیق غوره دے فاروق آمیر

یعنی په عثمان غنی نور منیر

و ذی النورین حقا کان خیرا

من الکرار فی صف القتالی

غوره دے عثمان په کرار علی

شیر د الله حیدر ابرار علی

وللکرار فضل بعد هذا

علی الاغیار طرالا قبالی

نشتے فضیلت علی حیدر لره

په نورو اصحابانو د سرور لره

وللصدیقة الرجحان فاسمع

علی الزهراؓ فی بعض الخصالی

هغه فضیلت چه عائشة لری
بعض صفات غوره له زهرا لری
یعنی په علمی صفت کمال لری
نسب کښی فاطمه لدے کمال لری

ولم یلعن یذیدا بعد موت
سوے المکثار فی الا غراۓغالی

چا لعنت ویلے په یزید نه دے
پس له مرگه دا لغت شنید نه دے
یے له هیر ویونکے په زیاتی سره
هیر حرص کونکے یے باکی سره
وائ سرکشان په سرکشئ سره
یعنی شیعه گان په نادارئ سره
نشتے په گناه سره لعنت په چا
یے له کفره مه وایه لعنت په چا
نشتے د سنی مذهب کښی دا ویل
یعنی په مسلم باندے لعنت کول

و ایمان المقلد ذواعتبار
لانواع الدلائل کالنصالی

قبول دے تقلیدی ایمان دلیل سره

تیغ غوندے صیقل دے په دلیل سره

خوک چه عالم نوی په توحید سنت

ایمان ئے ثابت نوی په قوی حجت

اقرار تصدیق چه تل وی په وحدت سره

یقین ئے د اسلام وی رسالت سره

عمل چه موافق وی له سنت سره

مزاج ئے مخلوط نوی له بدعت سره

دغه مسلمان دے په تقلید سره

ایمان ئے دے منظور په دے تنقید سره

وما عذر لذی عقل بجهل

بخلاق الاسافل والاعالی

جهل د عاقل بالغ حجت ندے

نه زده کول خدائے ته معذرت ندے

علم د توحید رسالت دے ضرور

کار د دنیا با دیانت دے ضرور

خلاص به امی توبه په انپړئ نشی

بدل چرے په مثال باندے شړئ نشی

تا چہ ځان هلاک کړه په غفلت سره
روح د ژوندے نشہ په وحدت سره
سر مے د توحید په بازئ ایخے دے
داؤ د نیازے ورتہ پرے یخے دے
یا بشی ګائل په چال د لآ الہ
یا بشی عارج په حال د یا الله
یا بشی منظور په نیازئ سره
یا بشی مسرور په بیدارئ سره
ذوق د وحدت استا لہ په ما لرے
ځکہ د توحید وینا په ما کوے
ځہ د یک رنګئ په رنګ رنګین یمہ
طوق د غلامئ تہ ډیر شوقین یمہ

وما ایمان شخص خال باس

بمقبول لفقد الامتثالی

پہ حال کښ د سختئ ایمان منظور ندے
توحید پہ نا چارئ سره منظور ندے
ایمان کښ منظوری وی په اختیار سره
نہ وی زنکدن کښ خیال بیمار لره

دا د نا چارئ ایمان منظور ندے
ختم د ژوندون سرے مامور ندے
آخر د زندګئ اول د مرګ بہ وی
یو وقت شی آخر د بل اول بہ وی
ځکہ توحید دا زمان منظور ندے
وقت د نا چارئ دے وقت د نور ندے
بندګی منظور وی پہ ژوندون سره
پس لہ ژوند ایمان نوی قانون سره

وما افعال خیر فی حساب
من الایمان مفروض الوصالی

نیک عمل ایمان سره حساب ندے
نیک عمل ایمان لره جواب ندے
پنج بنا څہ یعنی د ایمان اثر
نہ بشی ایمان لدے بناؤ شمر

ولا یقضی بکفر و ارتداد
و بعصر او بقتل واختزالی

حکم د کفران ارتداد مکوه
دا نسبت قاتل زانی تہ مکوه

مہ وایہ چہ فلان سڑے کافر شہ ځوک
یا فلانکے مرتد شہ یا کافر شہ ځوک
ومن ینوے ارتدادا بعد دهر
عصر عن دین حق وانسلالی
ځوک چہ وکړی نیت پہ ارتداد سره
دین بہ ئے برباد شی پہ عناد سره
ډیره زمانہ کہ ځوک دیندار وی
خدائے رسول پہ یو کفران بیزار وی
التجا د کفر پہ زارئ سره
یا نسبت خپل ځان تہ کفارئ سره
دغہ ارتداد دے لہ اسلامہ نہ
ټول عمل برباد دے لہ انجامہ نہ
ولفظ الکفر من غیر اعتقاد
بطوع رد دین باغتفالی
لفظ کفری ئے لہ اعتقادہ نہ
وینا شی پہ اختیار کښ نامرادہ نہ
رد بہ دینداری شی پہ ردت سره
گر چہ دا وینا وی پہ غفلت سره

اګر که دا وینا وی نادانئ سره

یا وی په جهلت په ناپوهئ سره

عام دے کلمه د توحید بار بار

پس له رد کفر وایه بار بار

ډیر آزاد عالم په دے برباد شه

خراب ئے د اسلام بیخ و بنیاد شه

ډیره مستی ډیر کفر دے ډیر ویل

بے تمیزه نیک و بد هر څه کول

ولا یحکم بکفر حال مسکر

بما یهذی وملفوا بارتحالی

حکم د کافر په مسکر مکوه

په حال کښ د مستئ ئے کفران مکوه

هر څه چه دے وائ په مستئ سره

هر څه چه کوی په بے هوشئ سره

بیا که دے په خود دغه روزګار کوی

هله به پے حکم د کفار کوے

مست که په مستئ کښ طلاق واچوی

نکاح ئے نه ماتیګی که سل واچوی

وما المعدوم مرئیا و شیا
لفقہ لاح فی یمن الصلالی

هر یو روک لیدونکے نوی چاوتہ
نوی لکہ شے ظاهر بل چاوتہ
کون د کائنات لره ماده نوی
محتاجہ پہ ایجاد کبں ایراده نوی
بے لہ خدایہ ټول عالم نابود گڼره
عکس د ایراد د دوئ وجود گڼره
ټول عالم پیدا دے ایرادے سره
شرط د کن مشیت دے ایرادے سره
عکس د ایرادے دے امکانی وجود
مظهر وحدت دے د کثرت وجود
بیا پہ توحید سره کیخو قلم څما
مضمون د امالی بہ شی برهم پہ ما
پورتہ کہ سر پورتہ کہ دا څہ وائے
څہ وائے توحید تہ کثرت څہ وائے
پورتہ کہ سر پورتہ کہ بیدار شہ
څہ وائے دا څہ وائے هوشیار شہ

دا وایم چه دوه طرف امکان دے
یو طرف امری دے بل خلقان دے
دا طرف آثر دے موثر لره
امر موثر دے د اثر لره
یو طرف خلقی دیگر امری گڼره
تن سر وجود ئے مظهری لره
یو دے معلق له ایرادے سره
بل طرف مظهر دے ایرادے سره

و غیران المکون لا کشیی
مع التکوین خذه لاکتمالی

کړه د خدائے کړه شوی نه جدا لره
واجب اؤ ممکن سره جدا لره
فعل د باری یعنی تکوین دے
اثر ئے کون دے چه تلوین دے
رنگ خو د رنگداره نه جدا وی تل
اثر د فعل له فعل نه سوی وی تل
اثر نه معلومیگی تل فعل هنر
له فعله معلومیگی د فاعل گذر

وحدت شهود کښ یو دے دریواړه

وحدت وجود کښ جدا دریواړه

دا اثر مظهر دے د فعلی صورت

لازم فاعل دے هر فعلی صفت

فعل د فاعل سره یکتا گڼړه

اثر د فعل له فعله نه جدا گڼړه

دا طرف فعلی طرف امری گڼړه

طرف د اثر خود طرف خلقی گڼړه

وحدت شهادت د سنی کار دے

وحدت وجود نه دے بیزار دے

وفی الاذهان حق کون جزء

بلا وصف التجزی بین خالی

کون د جز ثابت وی په یاداش کښ

بے له تقسیمی صفت پاداش کښ

خدائے زرے پیدا کړے په امکان کښ

جوسے ترینه ترکیب شوے په عنوان کښ

جوړے شوے جوسے له دے ارکانو نه

اے له نو پیدا عنصر امکانو نه

وفی الاجداث عن توحید ربی
سیبلی کل شخص بالسوالی

سوال بہ د توحید شی پہ قبرونو کښې
ډیر بہ آزمائش وی پہ سوالونو کښې
رب د څوک دے وایہ پیغمبر د څوک
دین د کوم دے وایہ چہ باور د څوک

وللکفار والفساق بعضا
عذاب القبر من سوءالفعالی

عذاب بہ وی د قبر کافرانو لہ
بعض فاسقانو بدخواهانو لہ
ورځ کښې د جمعے پہ دوه اخترو کښې
پورتہ بہ عذاب شی پہ اخترو کښې
تیر چہ دا اؤقات شی بیا بہ شی دوبار
یعنی تر قیامة پورے بار بار
بعض مومنان بہ تر جمعے پورے
آختہ بہ پہ عذاب وی دے مودے پورے
راچہ شی جمعہ عذاب بہ پورتہ شی
کار د ایعادے بہ لدوئ پورتہ شی

هم به په رمضان عذاب موقوف شی
درد وغم الم به ئے موقوف شی
ځی زاری ارواح د مومنانو تل
دیرش کاله په کور کښ د خویشانو تل
لس کاله بیګاه صبا راتلل کوی
لس کاله جمعه جمعه راتلل کوی
لس کاله راځی بیا په اخترو کښ
پس لدینه بند شی په راتللو کښ

و ان السحت رزق مثل حل
و ان یذکر مقالی کل قالی

رزق د حلال لکه حرام غوندے
بے دینان منکر دی د دجال غوندے
تیر چه له مرئ شی اندرون وته
رزق ئے نامه شی هر میمون وته
حساب کتاب کیدے شی له حرام سره
ثواب به موندے کیګی له حلال سره

حساب الناس بعد البعث حق
فکونوا بالتحرز عن وبالی

حساب د مخلوق حق دے پس لہ ژونده نہ
ځان ساتونکے وسہ لہ بد ژونده نہ
یعنی لہ گناه نہ اجتناب کوه
شامدام کارونہ د ثواب کوه
حلال کہ خوک حرام گنړی کافر بشی
حرام کہ خوک حلال گنړی کافر بشی
گناه تہ چہ گناه وائ خو خیر دے
پہ قدر بئے عذاب وی بیا خو خیر دے
ذره ذره حساب بہ د حرامو وی
دا رنگہ حساب بہ د حلالو وی
ذره خو شلویختم حصہ خاشخاش دے
یعنی تخم سپین چہ د خاشخاش دے
شلور حسابہ گران دی لہ بنده سره
روغ چہ دشمن نہ لری بنده سره
گرمہ ډوډئ یخے اوبہ تل چہ خورے
سورو کښ خوبونہ د غفلت کوے

وتعطے الکتب بعضا نحو یمنی
و بعضا نحو ظهر والشمالی

خی لاس کښې نامہ بہ چاتہ شی عطا
بعض تہ گس لاس کښې یا لہ شا ادا
څوک بہ شی خوشحالہ څوک بہ شی خفہ
څوک بہ ندامت سره وی ہیر خفہ

وحق وزن اعمال و اجری
علی متن الصراط بلااقبالی

حق دے پہ میزان سره عمل تلل
پہ شا بہ د حرام وی د هر چا گذر

و مو جو شفاعة اهہ خیر
لاصحاب الکبائر کاالجبالی

امید د شفاعت لہ اهل خیر دے
صاحب د کبائر لہ پکښې خیر دي
غر غوندے گناه کہ د چا وی کبیر
کار د شفاعت بشی د ده جبیر

و للدعوات تاثیر بلیغ
و قد ینفیہ اصحاب الضلالی

ہیر تاثیر دعا لری دلبار کښې
یعنی د واجب غنی دلبار کښې

انکار بہ لہ دعا نہ گمراهان کوی
یا خو بد بختان یا فاسقان لوی

دنیا نا حدیث والهیوے
عدیمہ الکون فاسمع باختذالی

نشتے هیو لا لہ حقیقت چرے
نشتے د کثرت لہ مادیت چرے
ځہ د هیولایو ټکړه ختہ ده
قدیم د کافر پہ نذد دا ختہ ده
وائ مسلمان چہ نوپیدا دے ټول
مطلق ایراد سره پیدا دے ټول
دا زری د عنصرے پیدا دے نو
تکوین د ایرادے سره پیدا دے نو
فکر د مشرک مقام تہ نہ رسی
یعنی د توحید نظام تہ نہ رسی

و للموتات اسباب کثیر
وما للعد فیہ من الرجالی

ہیر اسباب د مرگ دی چہ بیشماردي
خلق د دوئ لہ شماره نہ نا چار دی

یو ممکن کہ مړ د بل د لاسہ شی

دغہ ئے نیتہ دہ چہ بہ خلاصہ شی

یو قدم چہ اخلی میګے دا قدر

کم بہ نشی زیات لدے د چا عمر

ګمراهان مقتول لہ عمر کم ګنړی

ځلویخت ورځے لہ عمر نہ ئے کم ګنړی

وما المقتول مقطوع لاجل

سوی من عند اصحاب الضلالی

یو ممکن کہ مړ د بل د لاسہ شی

دغہ ئے نیتہ دہ چہ بہ خلاصہ شی

یو قدم چہ اخلی میګے دا قدر

کم بہ نشی زیات لدے د چا عمر

ګمراهان مقتول لہ عمر کم ګنړی

ځلویخت ورځے لہ عمر نہ ئے کم ګنړی

وللجنات والنیران کون

علیها مر احوال خوالی

ہیر عمر څہ تیر چہ دے پیدا جنت

هم دوزخ پیدا چہ پیدا شہ جنت

نشتے اندازه د پیدائش د دوئ
چا ته همرازه ده پیدائش د دوئ
وائ مشرکان چه لا پیدا ندی
دواړه په دنیا کښ هویدا ندی
وائ مسلمان چه پیدا دواړه دی
ظاهر بشی آخر قدرت کښ دواړه دی

ولا یغن الجحیم ولا لجنان
وما اهلوهما اهل انتقالی

جنت به وی باقی له جنتی سره
دوزخ به وی باقی له دوزخی سره
دوئ نه دی فانی د مسلمان په نیز
گر چه دی فانی د نافرمان په نیز

و ذوالایمان لا یقیے مقیما
بشوم الذنب فی داراشتغالی

ټول عمر دوزخ کښ به مومن نه وی
دائما عذاب کښ به مومن نه وی
عذاب به په انداز وی د گناه د ده
خلاص به شی چه خلاصه شی سزا د ده

لقد البست للتوحيد نظما

بديع الثکل کالسحر الحلالی

راغے د توحید نظم ځما پہ خیال

جوړ مے کہ رنګین لکہ سحر حلال

علم د توحید نظم کښې ګران دے

کار د شاعر کار د ساحر ګران دے

بند چہ شی مضمون د راز پہ شعر سرہ

دا لکہ بندیش غوندے پہ سحر سرہ

یسلی القلب کالبشری بروح

ویحیی الروح کالماءالزلالی

روح بہ د توحید پہ زیری شی بشیر

روح بہ کړی ژوندے لکہ شربت عسیل

روح بہ ژوندے کیګی پہ توحید سرہ

رسی بہ منزل تہ پہ توحید سرہ

منحوضوا فیہ حفظا واعتقادا

تنالوا جنس اصناف المنالی

پورہ پورہ یاداش د دے کتاب کوہ

نور دے توحید تام لہ دے کتاب کوہ

اے د اسلام جنس فائده مند شه

رښتونے عقیده کړه ارجمند شه

بے عقیدے ټول عمل برباد دے

بے توحیده ټول عمل کساد دے

وکونوا عون هذالعبد دهرا

بذکرالخیر فی حال ابتهالی

کړے مدت مدام په خیر خواهے سره

غواړمه له خدایه په زارے سره

امداد په اشاعت کښ د توحید کوئ

شور په خاص و عام کښ د توحید کوئ

لعل الله یعفوه بفضل

ویعطیه السعادة فی‌المآلی

امید دے چه به خدائ کړی مغفرت ځما

رابه کړی آخر کښ سعادت ځما

سوال سره سالم به ایمان پاتے شی

عمل کوه کامل به ایمان پاتے شی

و ان الدهر ادعوا کنه وسع

لمن بالخیر یوم قد دعالی

خه به کړم مدام دعا هغه وته

څوک چه کړی یو ورځ دعا نن ماوته

وایقن ان کل الخلق فان

ویبقے وجه ربك ذوالجلالی

یقین کړه چه تمام خلق فانی به شی

ذات د پاک مولا دے چه باقی به وی

نشتے دے باقی لره فنا چرے

نه به وی فانی لره بقا چرے

لباس د افغانی په امالی عروس

غلام ربانی که په خوارئ لبوس

مخ به ئے جلوه شی نظاره کوه

رنګ به ئے توحید وی نظاره کوه

سکر د دیدار که شی غالب په تا

فکر د اغیار بشی سالب له تا

دا مقصود د دین اؤ د اسلام دے

دا د توحیدی نظام انجام دے

عفوه که غلطی د غلام یا عفی

عفوه که شوخی د کلام یا عفی

***** تمت بالخیر *****

## ***** از بدر عرفان *****

ساه م گوگل کښې نه ځائیگی هغه روح مسیحا چرته دے

روح م په تن کښې نه پائیگی هغه شمس مجلا چرته دے

روح م له تنه کړی پرواز نیشته انداز د صنم

څه شو دلبر نورالبصر هم راه نما چرته دے

زړل م طوطی غوندے قفس کښې بندیوان د نفس

راشه ساقی‌نه یم باقی خایه وطن ددلربا چرته دے

ما کړه آزاد شومه برباد په عنصری ژوندون کښې

زه د مسکن هوا لرم هغه چمن گل رعنا چرته دے

وطن د یار ته رسیدل م ډیر آسان ښکاریگی

دا که عیان شوم پریشان رمز اسرا چرته دے

**********

---

دا ځما فکر برین لره اشتباه

د اسماءؑ برقیت لره ئے که شاه

د مقصود منزل ئے تام که په یو گام

شهادت ئے آرام گاه که په یو تراه

د حضور معانیت ئے عطایا کړه

په انوار ئے د دیدار که بدن چاه

اندرون منزلہ اؤ محربہ ئے صداقت کړے
رفت آمد ئے مقامی لره پہ ګاټ
برقیده ئے سوئ ګیس کړه لہ ناسوتہ
تابنده ئےکہ هم واټ

**********

---

انقلاب د زمانے هر څہ برهم کړه
د بے ذات نشی لہ ذاتہ امتیاز
نن د ہم پہ غاړه کوټ پتلون انګلش
شازادګئ غوندے ئے ہم کړه بدن ساز
رزیلان د اصیلانو پہ منجلس کښ
پہ آنارو بد لوی غو ټے د پیاز
د مولا اؤ د غلام فرق غلامہ
هغہ خوک کړی چہ لری فکر دراز

**********

---

چہ لہ شماره نہ بیشمار لہ کار بےکار شی
کلہ شمار وی پہ یارئ کښ د توحید
پہ یو رنګ کښ د یو یار یارانہ خوند کہ
سردارئ دی پہ یارئ کښ د توحید

غلامی د هر چا سر ته نه رسیگی
غلامی خو غلامی ده د توحید

بے توحیده به حرمت په مکان نشتے
که عزت دے خو عزت دے د توحید

مشکلات د زمانے به په آسان وی
په هغو چه تل نظر کړی په توحید

له ثوابه له عذاب حسابه تیر وی
مشرف چه په شرف شی د توحید

**********

---

د توحید به بام نشینه راشه راشه
د سنت په کام آمینه راشه راشه

گرفتار چرے په کار د اغیار نشے
په یو رنگ سره رنگینه راشه راشه

دروغ باز اؤ حیله باز چل بازے نه نئے
یگانه ئے ماه جبینه راشه راشه

بے له تانه ځما بل مقاصد نشتے
د توحید په کار غمگینه راشه راشه

بے لتا نه دبل چا هوس دار نه یم
د غلام د زړه تسکینه راشه راشه

**********

---

دا حیات امکانی یو انقلاب دے
چہ گردش د زمانے تہ ارتقاب دے

کلہ گل سرہ لہ برگہ نازیدہ وی
کلہ خاخ پرے لہ یے ہولہ پانہو ثیاب دے

لہ میوو نہ سرنگون شاخ د بیمار وی
پہ حریف کښں تش بازو تن پہ عذاب دے

شنہ خالونہ شنہ لاسونہ د خوبانو
گدیہونکے لہ هوا ساز د رباب دے

آوازونہ د بلبلو چغ د جونو
زہرہ غوخونکے دماغی گیر لہ شتاب دے

حقیقت امکانی گردش د حال هم
کبوتر غوندے پنجہ کښں د عقاب دے

بے توحیدہ بل قرار بل فرار نشتے
احدیت خو د کثرت عملی کتاب دے

بندگی د پاک مولا شرط ئے توحید شہ
لہ دے شرطہ نہ هر یو بندہ کامیاب دے

تار د فکر د غلام چہ تر مولا شی
لہ حیرتہ بریدہ د زہرہ تناب دے

## ***** رباب *****

د رباب په تار کښې جوړه ترانه یم
د مضراب په خوله کښې روغه افسانه یم

بې دماغه شوریده لکه رباب شوم
د عاشق غمگین له سوزه گویانه یم

تنیده شه هر یو تار ځماد فکر
د توحید په ځائے هوک کښې یگانه یم

تاؤ تاب م د تناب له تاوه تیز شه
په تیزگام د لامکان په سفرانه یم

که منزل م د امکان له خیره تام شی
په سفر د غلامئ کښې مردانه یم

سید پوری چراغ په مخ کښې تابنده که
توره شپه ده مسافر په ویرانه یم

دا ځما ویل کول په حساب مکړه
خوشے تشے غنگیدونکے دیوانه یم

دا ځما عمر آخر آخره خیر کړه
د توحید نغمه گویا سر پیرانه یم

دا ځما د مرگ غوغا نعره تکبیر کړه
ځه غلام د اسم ذات ذاکرانه یم

**********

د علی حیدر حملہ هنرنہ وو حیګر وو

حجت نوی چل هنر تہ د شیرانو

د توحید پلنګ پہ جاړه د مندرئ کښ

سر پہ پانجو کوی ښکار د مشرکانو

د غلام د زړه آرام د ګړنګ پریوت

چہ جدا عبدالرازق شہ لہ یارانو

دغہ رکن د توحید پہ پنج میران کښ

نیک وجود پہ اسلام کښ د نیکانو

***** کمال دل زنده *****

زړه یو فرش دے کہ چا فرش لیدلے نوی

حضور عرش دے کہ عرش لیدلے نوی

د هغو پہ نزد بہ دا سفر وی ګران

چہ الہ کښ چا کشش لیدلے نوی

مشکلات د عاشقئ بہ ورتہ هیڅ وی

چہ پہ عشق کښ چا تپش لیدلے نوی

د هغو د حضورئ بہ څہ سرور وی

چہ باطن کښ چا ورزش لیدلے نوی

زندگی بہ د هغہ ولی گنہیر شی
چہ پہ روح کبنں چا کاوش لیدلے نوی
تصور د حرف الہ سره لہ ذاتہ
برقی سیر کہ چا برقش لیدلے نوی
حبشی یم د مولا پہ غلامئ کبنں
زه غلامہ کہ چا حبش لیدلے نوی

***** زندگی *****

یو بوداش د نکائبو دے حیات
زندگی یا آسانی یا مشکلات
کلہ غم کلہ ښادی کلہ خندا وی
کلہ روغ کلہ ناروغ کلہ ممات
طبیعت کبنں تغیر وی یا نقصان
یا فساد وی یا هلاک وی یا نجات

***** کلامہ عارف *****

لہ کلام نہ معلومیگی معرفت
لہ سلام نہ شی پیدا د زړه الفت
لہ الفت نہ پیداکیگی محبت
محبت نہ پیدا کیگی احدیت

مظهره د احدیت انسانیت دے
له انسانه پیدا کیګی عبادت
خلاصه د حیات کار د عبادت دے
عبدیت نه پیدا کیګی ویصالت
وصالت د غلامانو لوئ دولت دے
له دولت نه پیدا کیګی وجاهت
په جهاد کښ له خپل نفسه نه فنا ده
له فنا پیدا کیګی بقایت

**********

---

راغے راغے ناساپی هجران په ما
تیر شه تیرشه د ویصال دروان په ما
نه پوهیګم چه په څه به رضا کیګی
مانړی ګر شه سید پوری جانان څما
تخت و تاج د عاشقئ شو خالی پاتے
لاړ شه لاړشه سید پوری سلطان څما
نه به بیا د سلطنت په مسند کینی
نه به شی جشن شاهی تبیان څما
تجلی چه ستا د غم راباندے وشوه
کل غمونه کړه فنا نسیان څما

کہ د ستا پہ غم بے غم لہ غمہ نشم
دروغجن بۍ سراسر بیان ځما

پیره ستا د مرشدئ لہ برکتہ
خدائے درنگ کړی پہ خپل رنگ نهان ځما

یاره ستا د یارانئ لہ شرافتہ
خدائے د کړی منزل د عشق آسان ځما

پہ خاطر د مجدد سید پوری پیر
دل پزیر کړے خدایہ دا دیوان ځما

پہ جمال محمدی ځما کریمہ
غلامہ وائ کړه ایمان آمان ځما

**********

---

نقش د دلبر کہ نقاش نقش کړی نازیګمہ
ناز اؤ کرشمہ بہ ئے لہ کومہ کړے یریګمہ

وصف د دلبر کہ دلبران د جهان ټول کوی
خیال بہ ئے جلال جمال دائم نشی پوهیګمہ

کاردے زهرپوختہ هم پوختہ کیګی تصورسره
بے تصور یار اغیار جدا نشی ګروهیګمہ

حال د شهادت معاینت وی یکتا خیال سره
رنګ د بد رنګئ پہ دورنګئ نشی پوهیګمہ

خدمت د غلامئ بہ دغلام نہ پورہ نشی
څو چہ حول قوت د مولا مل نشی لرزیگمہ
عبدحق سبق دحق توحید لہ حق نہ لوستے دے
دا تعلیم تدریس دخدائے نصیب کړی خوشحالیگمہ
جان داستاذجی بہ پہ جی جی سرہ راضی نشے
بس دے جیو جان دعبدالحق پہ حق صبریگمہ

## *****بحر طویل*****

شکر گویا پہ اعطا د مولا یمہ
چہ دلربا ئے کړہ جدا زہ رضا یمہ
د برخوردار نیکوکار پہ کردار شکر
شاکر صابر د قادر پہ رضا یمہ
ژبہ قلم د زړہ غم سترگے نم لرمہ
پہ زیروبم د خپل غم مبتلا یمہ
نہ دے پہ کار د اغیار سرہ یار ځما
امن آمان هرزمان لہ جفا یمہ
کہ م مطلب شی مشرب د یعقوب نبی
اشک روان پہ گریوان د بوړا یمہ

**********

اے عبد حق خدا سپارم د پہ خدا
اے ساکن فنا سپارم د پہ بقا
این منزل غریب ز غربت تمام شد
این نک وطن رسید نصیبت رفیق علی
مکانات کر وفر مقامات شور و شر
شے بہ ختم از قضا سپارم د پہ قضا
این مادر و پدر چہ خواھر چہ برادر
کا لہو واللعب یعنی آخر فنا
اے نا تمام کار غلامی برائے کار
جز فضل کرد یگانہ یتیم ترا سوا

***** دعا درحق عبدالحق *****

خلاص د شہ سفر اے مسافرہ پہ کلفت سرہ
گور د شہ خپل کور بوړا غریبہ پہ غربت سرہ
لاړے رخصتیگے لاس پہ سر دخپل بدن نہ تہ
سفرد باظفر شہ پہ ډیر شوق اؤ محبت سرہ
قضا بہ د مولا وی خہ رضا پہ دے قضا یم
دے حمدوثنا دہ د شاکر پہ شکریت سرہ

تیر شہ غم د سر تمام سر چہ بہ وو ستا پسر

غم خما پہ سردے چہ م سردے دسکرت سرہ

تامہ مزدوری دہ د مزدور چہ مزدوری کوی

دو چندہ نوکری کڑہ د غلامہ غلامیت سرہ

## ***** قلب المومن عرش الرحمن *****

دے وڑوکی زڑہ تہ حیرانیگم پہ واڑہ صورت

لوئ لوئ صورتونہ ئے نقش کڑہ پہ واڑہ صورت

داصورت ناسوت چہ دفرسوت غوندے صفت لری

دے وڑوکی زڑہ دے نقش کڑے پہ واڑہ صورت

ملک دملکوت چہ دے صورۃ دھر معنی حقت

دا صورت مثلی دے نقش کڑے پہ واڑہ صبورت

عالم د جبروت سرہ د دے جلال جمال نہ

دے نازک زڑگی دے نقش کڑے پہ واڑہ صورت

ملک لاھوتی چہ وھویت غیریت نہ لری

دے ناسوتی زڑہ دے شھو کڑے پہ واڑہ صورت

دا کتاب بیان بہ پہ دراز فکر عیان شی

وحدت شھود دے حاصل کڑے پہ واڑہ صورت

دا حکمت قوت مولا ورکڑے زڑہ عارف لرہ

حمد ئے ادا نشی لہ غلامہ پہ واڑہ صورت

**********

---

دا ځما فرض په تا دی که په ما
تقصیرات صفات ځما دی که لتا

ما په خپلو فرضو مه نیسه معزور یم
ته دا خپل فرض په ځان لره ادا

د مقصوره نه تقصیر تل صادریګی
له کماله نه کمال وی صادرا

د تقصیر علاج په عفوه شی کیدے
چه د عفوه په قوت وی څوک قوا

د عاجزو عاجزی یو لوئ هنر دے
چه په خیال ئے سیاست وی د اعلی

د محق تل په مبطل سره عزت وی
بے ابطاله محق نه وی لذیذا

پس له جرمه نوی فرحه د مجروح
لدے کاره خبر نوی صحیحا

علیلان اؤ پریشان به په پوهیګی
غلامان له غلامئ وی سرورا

**********

خدایا راولے نن بیا سید پوری نگار ځما

په څه رنګ به پخلا کیګی مانړی ګر تلے لما

هسے کړه تدبیر روئ باره چه دوبار نشی جدا

بیا به کله په لاس راشی ګم شده ګوهر یکتا

منت بار یم د روئے بار رحم کړه په حال ځما

یا خو زخم د ناسور دے یا دے زخم د سودا

چه ناسورزخم د زړه شی کړی چشمان د موعا

در مانده شی له علاجه د امکان ټول حکما

چه له صدقه څوک غلام شی پرے کرم شی د مولا

## ***** فنا فی الپیر *****

بل به پیره ستا غوندے پیدا ځما غمخور نشی

سپین به م د سترګو دد یدار په رنجو توررنشی

تا به د پتنګ غوندے ځما امتحان کړے وو

بل مشال د مخ به دے سرګند په شب دعجور نشی

تا چه د ابرو په کمان تیر د مژګان ګرز که

بویه چه د دواړو سترګو تور ځما نسکور نشی

بال و پر چه سوزی د پتنګ په نادانئ سره

بے ادبه یون به د دلبر په داب دستور نشی

خوک چه دلبری د دلبرانو په دلبار کوی

حال به ئے آخر لکه بلعم ابن باعور نشی

څوک چه په خودئ د ادب ترک لکه بیخود کوی

نا چشیده جام ئے د لاس ګنړی نسکور نشی

څوک چه مخفی رازددلبرفاش کړی داغیارسره

په داربه ګرفتاربه ډیر آزار لکه منصور نشی

قمه باذنی شمس تبریزی چل وی په وقت د حال

آخر به په فتوی د قال مسلوخ د حال معذور نشی

غلام دشمس الدین مولا راغل دے له سیدپورته

کړه تے شکایت هله چه ستا درمزه دور نشی

## *****سلسله نقشبندی*****

محمد صلی‌الله ابابکر صدیق و سلمان

قاسم اؤجعفر بایزید ابوالحسن د حرقان

بوعلی فارمدی یوسف همدانی عبدالخالق

عارف ریوګر محمود فغنوی علی رامیتان

سماس امیر بهاؤالدین علاؤالدین و یعقوب

عبیدالله محمد درویش امکنګی باقی سبحان

احمد آدم سعدی یحیی عبدالشکور عبدالرزاق

محمدصفافقیر محمد هم شمس الدین پهلوان

استاد راضی له تا دے رب دے شی راضی لتا

سره د عشق دا غلامه کړه آخر په ختمان

*********

خدایہ ذر گل کړہ ځما د زړہ ګلاب
پہ سیلاب ئے د رحمت خپل کړہ سیراب

د فیضان پہ خوشبوئ سرہ خوشبو کړہ
معطر کړہ پہ دماغ د شیخ شاب

هم رضا د خپل کرم ورسرہ ضم کړہ
بیا منظور کړہ پہ حضور د خپل جناب

د غفران فضل باران کړہ پہ نازل بیا
تل جاری لرہ ځما د حال میزاب

سیدپوری عرق ګلاب د خداے بسیارکړی
چہ پرے جام شی د غلامہ د زړہ لب لاب

## ***** قال اؤ حال *****

| | |
|---|---|
| اقوالی دے شریعت | احوالی دے طریقت |
| خبردار شہ پہ اسرار | فنائ دے حقیقت |
| بیګانہ لہ آشنا مہ شہ | عرفانی دے معرفت |
| غائب مہ شہ لہ غالبہ | علمانی دے ذوالقوت |
| ادبناک شہ پہ حضورکښں | حضرانی دے ذوالحضرت |
| لہ ډیر خوفہ عاجزی کړہ | غلبانی دے ذوالقوت |
| د غلام قوت غلامی دہ | چہ فانی دے هر لذت |

## ***** پناه د الله *****

الامانم یاره من شرالنفاق

الامانم الامانم من فراق دوستی

څه به کړم شیخی دروغ آمیزه له نفاق سره

الامانم الامانم از نفاق دوستی

البغض عندالله له مباحاتو د فسخ عقود

الامانم الامانم از طلاق دوستی

دارمدار لازم وی د دوستئ په صداقت سره

الامانم الامانم از فساق دوستی

شرط خوددوستئ په په مروت ملاحت تام سره

الامانم الامانم من خراق دوستی

دوست چه وی جاهل تل به کاهل وی‌ددوستئ په کار

قطع کړه غلا مه پس له دے مزاق دوستی

خوږ مے په رودو کښ د خواګه بوړا دوران کوی

الامانم الامانم از زلاق دوستی

یار چه شه میلمه لکه د مرغ بیګانه وطن

الامانم الامانم از قناق دوستی

**********

اے دل مستان ماشیوہ مستان بھل

اے صورت ناتوان خُما کار جوانان بھل

اے دل رنگین مارنگ دبوتہی رنگ نشی

خیال لکہ بینا کوہ کارنابینان بھل

اے ھوس دوبین خُما یو طرف تہ کرہ نظر

خود فنا فی اللہ بشے کار د دوبیان بھل

اے روح یکتا ئے مالہ حرم نہ دوتا نشے

گوھر یکتا ئے تو کار دو تانان بھل

اے پرے رویان فلک بود شان بود بار

بود یک معبود بار بارصد بوتان بھل

اے غلام شرمسار کار د غلامے کوہ

مولا بہ شی لتا رضا کار باکان بھل

اے دل شیدا ما عشق د غیراللہ مکرہ

غیر بہ پہ تغیر شی غیر کارمشرکان بھل

اے نظر چشم ما دیدار یک دلدار کن

تیز کرہ نظر در شھود کار شب کوران بھل

## ***** رحمت للعالمین *****

هغه صدر د امکان رحم عیان

محمد خیرالبشر ختم نبیان

راهنما د احدیت استاذ د دین

مظهره د هدایت نور د ایمان

د جلال اؤ د جمال نور د کمال

عنا یت ازلی فضل منان

## ***** ورتل القرآن ترتیل *****

رواجی حرف تہ چہ قرآن وائے افسوس پہ دا

د را ادا کښې چہ څوک واؤ وائۍ افسوس پہ دا

د واؤ ادا سره پیدا شی پیغ

پہ ځائے د زور باندے گویا شی پیغ

پہ عربیت کښې عجمیت شی پیغ

دغہ تہزیب کښې تکذیب شی پیغ

روحیم روجیم تہ چہ ترتیل وائے افسوس پہ دا

رواجی حرف تہ چہ قرآن وائے افسوس پہ دا

خلور مقامہ فاتحہ کښې غلط

د صاد ادا کښې واؤ ویئل دے غلط

د زیر پہ ځائے ضمہ ویئل دے غلط

صراط صوراط تغیر کول دے غلط

حرف زائد تہ فصاحت وائے افسوس پہ دا

رواجی حرف تہ چہ قرآن وائے افسوس پہ دا

د طہ الذین پہ ځائے طول ویئل

ضمہ پہ ځائے باندے د زور جوړه ول

د خدائے طاعت پہ طبیعت بدلؤل

بلا استاذه د قرآن زده کؤل

لحن جلی تہ چہ خفی وائے افسوس پہ دا

رواجی حرف تہ چہ قرآن وائے افسوس پہ دا

ضوالین لہ واوه سره ږیر دے غلط

ظوالین لہ واو لہ پیخ ږیر دے غلط

مدخاص پہ ضآدکښې واومزیددے غلط

غور پہ قرآن کہ ستا قرآن دے غلط

د قوم ضامن غللط امام وائے افسوس پہ دا

رواجی حرف تہ چہ قرآن وائے افسوس پہ دا

د را لہ صا لہ طا نہ روستو مدام

د ضا د ظا ادا کښ روستو مدام

چہ واو ضمہ شی را پیدا ے مقام

دے تہ ځوک وائ د قرآن احترام

کہ خپل رواج ځوک قرآن وائ افسوس پہ دا

رواجی حرف تہ چہ قرآن وائے افسوس پہ دا

ذرے ذرے د لمہ یلد پہ زیر یم

پہ لمہ یولد د میم ساکن پہ زیر یم

پہ لمہ یکن د میم جازم پہ زیر یم

د ولیدین پہ نغمہ ہیر زهیر یم

لفظی غلط خو معنوی وائے افسوس پہ دا

رواجی حرف تہ چہ قرآن وائے افسوس پہ دا

مد قصیر لکہ طویل چہ لولی

هم منفصل لکہ وصیل چہ لولی

بلا اندازه هر علیل چہ لولی

عزیز پہ طور د ذلیل چہ لولی

خود پہ قاری لعنت قرآن وائ افسوس پہ دا

رواجی حرف تہ چہ قرآن وائے افسوس پہ دا

(بقیہ صفحہ نمبر456ٹائیٹل (حصہ نعت) کے بعد)

# حصہ نعت

## پشتو

# منظوم کلام

شیخ المشائخ

جامع شریعت وطریقت

قطب الاقطاب ولی کامل

## حضرت مولانا غلام ربانیؒ

نقشبندی مجدّدی سیدپوری

پشتو

# منظوم کلام

شیخ المشائخ

جامع شریعت وطریقت

قطب الاقطاب ولی کامل

## حضرت مولانا غلام ربانیؒ

نقشبندی مجدّدی سیدپوری

حرف پہ مخرج لہ خپل صفت سره خود
پہ اندازه لہ فصاحت سره خود
چہ شی ادا لہ بلاغت سره خو
هم د استاذ د هدایت سره خود
پہ تا نثار نور د قرآن وائے افسوس پہ دا
رواجی حرف تہ چہ قرآن وائے افسوس پہ دا

ځما سودا شوه راپیدا پہ قرآن
غور م چہ وکړو د ترتیل پہ فرمان
لہ خپل قرئت نہ شومہ ډیر پریشان
تہ وکړه غورانصاف پہ حق کښں د ځان
دا رنگے مونځ تہ تہ صیصح وائے افسوس پہ دا
رواجی حرف تہ چہ قرآن وائے افسوس پہ دا

کہ بلا عذره څوک کوشیش نہ کوی
دحرف ادا کښں څوک تفتیش نکوی
حکم د خدائے سره رویش نہ کوی
علم تجوید باندے تشویش نہ کوی
غلام بہ ده تہ نافرمان وائ افسوس پہ دا
رواجی حرف تہ چہ قرآن وائے افسوس پہ دا

## ***** نعت شریف *****

یا حبیب کبریا انوار د والضحی لرے
اسرار د معرفت لره والیل اذا سجی لرے

دائم قریب لم یزل ما و د عك شان تو
کمال د وصالت لره حجت د ماقلی لرے

ما وائي اوصاف جمیل منشائي فیضان جلیل
نعمت د آخرت لره خیر من الاولی لرے

لہ قضا بہ شي یکدم عطا هغہ خیال چہ ذالعلیلرے
رضا د رب عزت لره خطبات فترضی لرے

در یتیم بے بھا قیمت لري نزد خدا
حرمت د سلطنت لره مسکن د فاوئ لرے

از عالمان این جهان حرفي نخواند برزبان
تعلم د علمیت لره معلم د فهدا لرے

بے نیازلہ هرذي نازئے ما سوىلہ هرانبازه ئي
قوت د لوئ دولت لره خزینہ د فا غنی لرے

اے مصرورزان یتیم بر سا ئلان باشي کریم
کا مل بیان صفت لره یسین اؤ طا ها لرے

د مطلب پہ لارروان یم پہ منزل کبں حراما ن یم
رفتار د طریقت لره من سنت الهدا لرے

سرحلقہ ولیان توئي ختم پیمبران توئي
قانون د کرامت لره ولایت کبری لرے
جھاز د سیدپوري لرم بندر د سر هندي لرم
دریاب د صدیقت لره بنیاد مصطفی لرے
د غلام اثیم غم خواره لاس راکړه رب د پاره
شرمنده د ټول امت لره غریب ګړنګ ملا لرے

******* نعت شریف ******

ستا لہ وصفي زیبہ نہ زیب زینت غب غب لري
ستا لہ مھیب هیب نہ جام ده جم لب لب لري
یا حبیب کبریا یا شفیع خیر الوری
ستا لہ عداوتہ نہ تبت ابي لھب لری
یا وھاب یا کریم یا تواب یا رحیم
ستا لہ کرامت نہ سلیمان نبي دبدبب لري
ستا لہ شان لولاکہ نہ ستا سیر افلاك نہ
ستا لہ حجرت پاکہ نہ مدینہ لقب یثرب لري
ستا د عشق لہ تاب نہ ستا لہ قوس و قاب نہ
ستا لہ میو ناب نہ منقار سري کب کب لري
ستا لہ شان شوکت نہ ستا لاحول قوت نہ
ستا لہ مرحمت نہ انسان حسب نسب لري

لا تقنطو تکیا لرم اغفر لنا وینا لرم

غلامئ کبس لہ غلامہ نہ هرخوک تعب عقب لري

## ***** نعت شریف *****

اے شاہ ذالجلالہ آمان راکړه لہ اغیارو

درون مے مجلا پہ تجلو کړه د انوارو

روزی مے کړه احوال د ذالاحوال رب تعالی

روان مےکړه منهاج وهاج کړه دابدارو

جذبہ سکر وحدت چہ علامہ دکرامت ده

بخشش پہ هدایت کړه چہ خبر شم پہ اسرارو

هغہ معشوقے چہ پہ حجاب د افعالو دی

جمال ئے رانما کړه طلب دار یم ددلدارو

هغہ تجلی چہ پہ حریم کبس د صفاتو دی

محرم مے دهغو کړه پہ حرمت دحرام دارو

هغہ ماه نزیر چہ پہ خیموکبس د اسماؤ دی

ما تر قربانی کړه یم قربان لہ خیوه دارو

بحر د فنا کبس د بقا ګوهر عطا کړے

قادر پہ انکشاف ئے در جملہ و پرده دارو

شرط دطریقت بیعت اخلاص اؤ محبت دے

طلب کښ ویصالت ده راکړه شغل د اذکارو

څوک چہ اراده کړی د کرامت طاعت د پیرکوی

پرهیز د ګنا هو نو مبشر دے د ابشارو

ثنادګل سحرکہ بوراګان سخری خیز

کلہ ګونګټان کاندی پرواز پہ لالہ زارو

لاس اؤ خپےګونګټ چہ ګندګئ سره لتپت کړی

څکہ نہ بلوسیګي پہ ګلاب لاس د مردارو

هغہ علاقے چہ ددنیادی کل مردارے دی

زړه نہ صفا کیګي بے لہ ترک د مردارو

علاج کہ د زړه غواړے سید پوری حکیم حاذق لہ ځہ

پر هیز شریعت لری تریاق د زهردارو

لارپہ کونګلئ کنډؤ ده بهراسئ لہ ځی

لہ ګړئ نہ ګلوټئ سیرئ سیدپورړک دانوارو

## ***** نعت شریف *****

یا حبیب کبریا صل علیك یا نبی المصطفی صل علیك

یانبی نورالهدای صل علیك اے شہی بدرالدجی صل علیك

اے دل وجان عرب صل علیك اے شهنشاه عجم صل علیك

یاشهی صدرالعلی صل علیك اے سرکهف الوراصل علیك

رحمت للعالمین صل علیك واسطاللسالکین صلے علیك

صلتہ للواصلین صل علیك راحتہ اللعاشقین صل علیك

اے نبی غمخوار خُماصل علیك اے شهردلدارخُما صل علیك

وکڑه سفارش پخپل زیباجمال فی جناب لا یزال و بے زوال

ا هدنا یا ها د نا با ا لکرم ا شفنا یا شافی قلب السقم

اے غلاما شمس الدین طالع شده

قاف تا قاف نور او لا مع شده

انکہ بد مارا برو قانع شدم

بر مزید رحم حق تالع شده

## ******** نعت شریف په څلورو ژبو کښې *********

عربی اردو فارسی پښتو

کیف کان کسطرح باشد چه سان څه رنګ به وی

رویت ضیاؑ چهره سفید تیرا جمال خوش رنګ به وی

شاه عجم سلطان ملک فخر عرب څمونګ نبي

قربان هون مین فدا زتو لبیك ما هر درنګ به وی

افسوز هے هم الغیاث افتیم دور از در ګه ات

صاحب دخوش اقبال بلنددربارکښې څنګ په څنګ به وی

یالیت کنت بوده می باشنده دارالسلام

ګر اوس وقت یه آرزو حاصل شی عجب رنګ به وی

کل من از برد چشمان خود به جمال تو

مرحوم بشی در آخرت په جهان مثل اورنګ به وی

یا عاشق نورالاله ازهب الی سید پوریا

که اخلاص عشق کامل لرے ډک له نوره یے درنګ به وی

یه تو هے غلام که التجا دا څما د زړه ارمان دے

که رسم مدینه یا خدائے یا څما مدفن ګړنګ به وی

## ********* نعت شریف ********

کن نظر کر تو نگاہ انظر حُما روح البدن

شو شفیع بھر خدا مجھکو شہا روز حزن

بس شرافت بہت عدالت ہیرہ نیکی ھم کرم

تہ لرے ھے آپ مین داری وفیك الجمعن

دست دہ گرتا ھون فی واد عزاب محترق

می شود تیرا نظرالیالغریقان فیالمجن

سوچتا ھون مین خیال اندرجمالت یا ھدا

اشہالنا آپ کی فراق من شربت قندولبن

صاحب المعراج خاوند تاج خیرالبشرئےھم

کررحم مجھ پرگنہاہ گاریم علے وجھ الحسن

مرشدا سید پوریا درگاہ داری بے ریا

انبار دے ستا لہ فیض نہ پہ زہرہ حُما مشک ختن

شو شفیع کن تو نگاہ پر ما غلام اندر حشر

یا ایھاالسلطان اے بادشاہ شہنشاہ وطن

## ****** نعت شریف *******

خیل د نبیانو کښې سلطانہ
شاہ زمانہ قصد دے معراج دے

جبریل پہ لاس کښې رکاب نیسل دے
بل د اسرا ئے خطاب وئیل دے

پہ ډیر آدب جوش خیرامانہ
شاہ زمانہ قصد دے معراج دے

رب الخلاق هم پرے اشتیاق هم
جبریل بوراک هم کہ ستا رفاق هم

مسجد حرم تہ شوے روانہ
شاہ زمانہ قصد دے معراج دے

عجب خروج دے عجب ولوج دے
احسن عروج دے سیر د بروج دے

ملائک واړه شو حیرانہ
شاہ زمانہ قصد دے معراج دے

پہ یو لحظہ کښې پہ یو طرف کښې
پہ یو دمقہ کښې پہ یو لمحہ کښې

مسجد اقصی تہ شوے رسا نہ
شاہ زمانہ قصد دے معراج دے

کہ دی املاکو کہ دی افلاکو
تیر لہ ملاکو هم لہ سماکو
قابہ قوسین شوے لہ سبحانہ
شاہ زمانہ قصد دے معراج دے

میمون دعوت دے میمون شفقت دے
بیچون وصلت دے بیگون قربت دے
چہ ترے مغفور شو مومنا نہ
شاہ زمانہ قصد دے معراج دے

غواړم دیدار هم څہ د روئے بارهم
خیر الابرار هم شی دے غمخوارهم
زرے زرے کړم ستا هجرانہ
شاہ زمانہ قصد دے معراج دے

اخلی غلام نن لہ عشقہ گام نن
د زلفو دام نن دے پہ قیام نن
یم بند پہ بند کښں بندیوانہ
شاہ زمانہ قصد دے معراج دے

قصد دے معراج دے قصد دے معراج دے
خیل د نبیانو کښں سلطانہ
شاہ زمانہ قصد دے معراج دے

## ********* نعت شریف *********

دریاب کرم په هر دم ستا جو شیګی

امواج د نعمت هر منعم ته رسیګی

دریاب د کرم دے روان په جوش

خروش ئے عالم کړ له هوشه بے هوش

نصیب مقرر هر بشر ته رسیګی

امواج د نعمت هر منعم ته رسیګی

مدام تګے ناست په ساحل د دریائے

یو جام د عرفان کړه مولا راعطائے

سیلاب د خوناب په رخسار مے بهیګی

امواج د نعمت هر منعم ته رسیګی

ګوهر د بقائے له دریاب ده فنا

عطا ئے کړه په روئ د حبیب کبریا

سوال په حبیب رب مجیب ته قبلیګی

امواج د نعمت هر منعم ته رسیګی

خبر مے حال د احوالو صفا کړے

درون مے روشن په زیبا تجلی کړے

حجاب نفسانی شیطانی نه کمیګی

امواج د نعمت هر منعم ته رسیګی

صلہ کاملہ سیدپوری مے پہ لاس

امداد استمداد مشروعہ التماس

وطن د وحدت تہ غلام رخصتیگی

امواج د نعمت هر منعم تہ رسیگی

## ********** نعت شریف **********

حبیب خدا چہ رحمت د عالم دے

ماء وائے د انوارو د ابن آدم دے

نبوت ویلایت لہ اصلی تہ ئے

شرافت عدالت لہ نسلی تل ئے

پیدا هویدا زیر بالا ستا کرم دے

حبیب خدا چہ رحمت د عالم دے

صاحب د نعیم اؤ د ملکا کبیرا

زمین اؤ زمان کښ سراج المنیرا

معشوق د عربو مولا د عجم دے

حبیب خدا چہ رحمت د عالم دے

کریم السجایا دلدار ئے څما

نبی الورایا غم خوار ئے څما

خاکسا ر د امت یم ستا روک مے غم دے

حبیب خدا چہ رحمت د عالم دے

ماده د نبوت نبیانو لره
وصل د ویلایت ولیانو لره
قانون د کرامت شفیع الامم دے
حبیب خدا چہ رحمت د عالم دے
صلوات سلام علیك رسولہ
پہ درگاه د حق آل اؤلاد ستا قبولہ
شاباز کبش د فکر سرور زیرویم دے
حبیب خدا چہ رحمت د عالم دے
قسم چہ غلام د کلبانو یم ستا
باور چہ خادم د سگانو یم ستا
بادشاه هغہ سیے دے چہ ستا پہ قدم دے
حبیب خدا چہ رحمت د عالم دے
زانو پہ ادب درتہ ناست توجہ کڑه
پیر و پیران حقیقی توجہ کڑه
پیر د کشمیر سید پوری مے یادیگی
تاؤ د هجران پہ زڑگی مے تیریگی
راهبر د اکبر موصل مهتمم دے
حبیب خدا چہ رحمت د عالم دے

نرګس غوندے ټیټ سرګریوان ته نظر

نقش د ا لله کړه په زړه برابر

مدام لره خیال دغه ذکر اهم دے

حبیب خدا چه رحمت د عالم دے

په تاردالطاف سور رباب د سینےکا

بیرته د زړه نه جمله اندیخنے کا

شاباز کبښ دفکر سرور زیروبم دے

حبیب خدا چه رحمت د عالم دے

غلام وائ ما کړه خبر په دے راز

حقت مے قربت ته کړه پورته براز

عرفان دسبحان مے مطلوب په هردم دے

حبیب خدا چه رحمت د عالم دے

********نعت شریف********

شا فع محشرنبی سرور به بیا پیدا نشی

قاسم کوثر نبی سرور به بیا پیدا نشی

منزل تنزیل څه شو محبت جبرائیل څه شو

هادئ رهبر ده پاک اکبر به بیا پیدا نشی

قاسم کوثر نبی سرور به بیا پیدا نشی

فاطمہ زهره خہ شوه خدیجتہ الکبری خہ شوه

رحمت دختر لہ نیک مادر بہ بیا پیدا نشی

قاسم کوثر نبی سرور بہ بیا پیدا نشی

حامل قرآن خہ شو عامل قرآن خہ شو

ناشر خبر د بحروبر بہ بیا پیدا نشی

قاسم کوثر نبی سرور بہ بیا پیدا نشی

خہ شو د توحید یاران خہ شو د تمجید یاران

شاه صدیق اکبر فاروق عمر بہ بیا پیدا نشی

قاسم کوثر نبی سرور بہ بیا پیدا نشی

حیدر کرار خہ شو شیردرب غفار خہ شو

قا تل کفار پہ ذوالفقار بہ بیا پیدا نشی

قاسم کوثر نبی سرور بہ بیا پیدا نشی

جامع القرآن خہ شو لامع بیان خہ شو

دولت گوهر د سیم و زربہ بیا پیدا نشی

قاسم کوثر نبی سرور بہ بیا پیدا نشی

جملہ اصحاب کرام جملہ ارباب نظام

ذاکر اکبر شام و سحر بہ بیا پیدا نشی

قاسم کوثر نبی سرور بہ بیا پیدا نشی

خہ شو تبلیغی کلام خہ شو توحیدی نظام

ناظم احقر غلام کمتر بہ بیا پیدا نشی

شا فع محشرنبی سرور بہ بیا پیدا نشی

قاسم کوثر نبی سرور بہ بیا پیدا نشی

## ****** نعت شریف ******

حضرت بہ شفاعت د گناہ گار امت کوی

محشر کښں بہ آرزو د گناہ گار امت کوی

حضرت بہ شفاعت لہ کمر بند وی پہ میدان

دوزخ نہ بہ اخراج د گناہ گار امت کوی

جملہ پیغمبران بہ د نفسی کړی آوازاونہ

خیرالامم بہ خواست د گناہ گار امت کوی

طاقت بہ د چا نوی چہ یو گفت کړی پہ لسان

کان الحیا بہ بحث د گناہ گار امت کوی

رھا بہ لہ نھران نہ مجرمان کړی د اسلام

تدخیل بہ پہ گلزار د گناہ گار امت کوی

جرمونہ د ملکونو پہ گردن لرم انبار

گذران پہ صراطؔ د خپل غلام حضرت کوی

داخل دے پہ ارم کړہ استاد ځما دویم

سبق کښں د غلام سرہ کامل شفقت کوی

## ****** نعت شریف *****

فکر بلند د مدینے ښخہ دے
د زړه دلبند مے د پنجرے ښخہ دے

لاس پہ نامہ اوښکے پہ مخ روانے
روح ارجمند مے لہ پردے ښخہ دے

رحم عالم دے صورتا پہ پنجره
فیض ئے معنا هر یو ذرے ښخہ دے

حاجی ثواب غواړے کہ وصل د یار
تہ ئے ثواب وصل پنجرے ښخہ دے

عاشق ثواب حق دار دے معشوقان
سوز د حضور صفا بشرے ښخہ دے

وقت د رخصت بیا نہ ویئلے نشی
حاجی حیرت زده پنجرے ښخہ دے

داغ دار پہ داغ د غلامئ غلامہ
خدمت د فکر لہ پنجرے ښخہ دے

## ******* نعت شریف *******

مزار د یار تہ بہ رسیگے ځہ رنګ

بیا بہ لہ یارہ رخصتیگے ځہ رنګ

پہ ریګستان بہ د حجازوے روان

د یار دیار تہ بہ رسیگے ځہ رنګ

ګرم قدم ګرم همم دے روان

خیرالابرارتہ بہ رسیگے ځہ رنګ

لہ ډیرہ عمرہ آرزو مند د وصل

خمار د یار تہ بہ رسیگے ځہ رنګ

پہ راہ برے د دلبرئ دے روان

بھارد یار تہ بہ رسیگے ځہ رنګ

نظر د رحم پہ غلام رحیمہ

سنت د یار تہ بہ رسیگے ځہ رنګ

## ******* نعت شریف *******

السلام اے شاہ سردار عا لم

السلام اے شاہ غمخوار عا لم

غمخوار د زړه بیمار چہ محمد عربی دے

دلدار د زړه خون خوار چہ محمد عربی دے

د ثقلینو محمد نبی سردار ځما

د فریقینو محمد نبی دلدار ځما

پہ امید د شفاعت طالب راغلے یمہ

لہ خپل عملہ شرمندہ یمہ راغلے یمہ

تیمار د زړه بیمار چہ محمد عربی دے

دلدار د زړه خون خوار چہ محمد عربی دے

آ رزو د مدینے دیدار د مدینے

پہ ځنګ کښں د پنجرے نظر ئے پہ روضے

دیدار د زړه داغ دار چہ محمد عربی دے

دلدار د زړه خون خوار چہ محمد عربی دے

شرف کړه پہ دیدار ځما زړه ناقرار

د عمر انتظار آخر نشی بیکار

روئ بار د زړه نادار چہ محمد عربی دے

دلدار د زړه خون خوار چہ محمد عربی دے

ګنبدے حضرا ئے ځما د زړه سودا ئے

آخر شوه په غوغا د وصل تمنا

نګار د زړه رنګدار چه محمد عربی دے

دلدار د زړه خون خوار چه محمد عربی دے

نظر د شفاعت د غلام په ندامت

میدان کښ د قیامت آرزو د مغفرت

کار دار د زړه بیکار چه محمد عربی دے

دلدار د زړه خون خوار چه محمد عربی دے

## ******* نعت شریف ********

خلق ایمان غواړی ځه یار غواړمه

رکن ثانی مظهر د یار غواړمه

ستا په لفظی ایمان خندیګم شیخه

معنوی نور د خپل نګار غواړمه

په ایمان اخلی ئے قصور د جنت

ځما توبه چه خپل دلدار غواړمه

په تقلیدی ایمان مغروره ملا

ته جنت غواړے ځه روئے بار غواړمه

نه چا اول نه چا آخر دے آخر

وایه ملا جواب تیار غواړمه

فرض تقدیس دے کہ تعریف مقدم
ځہ مستقل عرفان د یار غواړمہ
اصل د پریخو پہ تقلید د راوی
ځہ الھامی دلیل آب دار غواړمہ
امتثا لا یمہ نوکر د امر
قبول امداد د غلامئ غواړمہ

******* نعت شریف *******

لہ ذکر جلالہ درون تل صفادے صفادے صفادے صفا
موقوف هر یو کارپہ رضا دقضادے قضادے قضادے قضا
شروط دسلوک دی خلور تل پرے یون کا
پہ شرع روان مدام ذکر بیچون کا
خلافت نفسی سرلہ پیره فدادے فدادے فدادے فدا
هغہ اندیخنے چہ پیدا شی پہ قلب کښ
پہ ضرب ذکری ورلره ورکړه ضرب
معاد مرض لہ مرض نہ ازادے ازادے ازادے ازا
انسان سر د حق دے حق سر د انسان
مدام خیال طرف تہ د ذات کہ روان
بے کیف ئے ذات دے لہ کیفہ سوادے سوادے سوادے سوا

کرشمہ دقدرت پہ ممکن کښې ګوره

تصور د حکمت کړه اسماءؑ تہ ئے ګوره

لہ فکرت نہ وحدت نمادے نمادے نمادے نما

لہ رسم و رواجہ بیرون شہ یکدم

سوا لہ رضا ئے مکړه دم هم قدم

مذهب د سالک لہ رواجہ جدادے جدادے جدادے جدا

ذکر دائم کم خوراک کم کلام دے

ہیر کم منام اعتزال ترک حرام دے

وصول کړه فنا چہ حاصل ترے بقادے بقادے بقادے بقا

افسوز چہ ظاهر اؤ باطن مے یکسان وے

پہ حکم خدائ درسول سم روان وے

دام د تذویر مے دا نوم د ملادے ملادے ملادے ملا

شیخی ملائ لوئ افت دے خبر شہ

اسلام ساده کار دے لہ رنګہ بهر شہ

ولی متقی لہ روزګار پنج بینادے بینادے بینادے بینا

د پیر سیدپوری دامن ګیر دا غلام دے

ویلایت دوصلت دے مرشد رام دے

حوالہ پہ خدائے دا خراب حال ځمادے ځمادے ځمادے ځما

لہ ذکر جلالہ درون تل صفادے صفادے صفادے صفا

## ******** نعت شریف ********

د یار دیار تہ بہ رفتن کلہ وی
جمال د یار تہ بہ دیدن کلہ وی

سفر د یار بہ تیاریگی کلہ
پہ دغہ لار بہ ریویدن کلہ وی

غنودہ بخت بہ بیداریگی کلہ
کاروان د عشق بہ پہ رفتن کلہ وی

اس د ھوس چہ قبضہ شوے نہ دے
د خیال قدم کبنں نازیدن کلہ وی

چہ د گل مخ طواف ئے کړے نوی
طوطی د باغ کبنں چغیدن کلہ وی

کہ سر ځمادے ما بائیللو پہ تا
د بل پہ مال بہ خریدن کلہ وی

پہ فضل ستا ځہ خریدار یم لتا
پہ بلہ لار بہ رسیدن کلہ وی

پریشانی د عاشق زندگی وی
پریشانے کبنں بہ مردن کلہ وی

زړہ چہ زخمی شی پہ خنجردبنړو
خود شی ناسور آرامیدن کلہ وی

پرواز د خیال کښ خپل اختیار نہ لرم
د پل پہ پر بہ پریدن کلہ وی
مخ د دلبر دے دین ایمان د غلام
بے لہ ایمان نہ بہ دیدن کلہ وی

## ***** نعت شریف *****

څو چہ محبت د محمد سرہ زیاتیگی
دومرہ بہ قوت پہ نیک عمل کښ پیداکیگی
دین کہ ورتہ وائ محمد مظہرددین دے
غیر د محمد نہ دیانت نہ پیدا کیگی
واخلہ ھغہ څہ چہ محمد راوړے تا لرہ
منع لہ منھی شہ مسلم پس مسلمانیگی
رضا و کبریا د مصطفی پورے موقوفہ
غیر لہ محمد نہ پاک مولا نہ رضا کیگی
بدعت د بدعتیانو خسارت د آخرت دے
زنگ دے آھن خوا چہ پہ آھن کښ پیدا کیگی
ایمان وائ توحید اؤ رسالت تہ احمد نبی
بیا د بدعتیانو پہ بدعت ولے زیا نیگی
خدایا د بدعت نہ د غلام غلامی خلاصہ کہ
توفیق د سنت ورکہ بے توفیقہ نہ خلاصیگی

## ***** نعت شریف *****

دیدار د هغه یار خیرالابرار ځما یادیګی
څوک چه ملکوت کښ په احمد سره یادیګی

پس له موسی پس له عیسی
شوربه وی برپا تل به وی غوغا
جسم محمد نه محمد سره یادیګی
څوک چه ملکوت کښ په احمد سره یادیګی

منشائے مولا مظهرے اسماءؑ
برزخ کبری ولایت کبری
حقیقت احمدی دے محمد سره یادیګی
څوک چه ملکوت کښ په احمد سره یادیګی

روئے محمد کوئے محمد
خوئے محمد بوئے محمد
محمود اسم احمد دے محمد سره یادیګی
څوک چه ملکوت کښ په احمد سره یادیګی

شرافت احمد هدایت احمد
کرامت احمد شفاعت احمد
مطیع به په محشر کښ محمد سره یادیګی
څوک چه ملکوت کښ په احمد سره یادیګی

ایمان د محمد آمان د محمد

رجحان د محمد جانان د محمد

نور سبحانی دے محمد سره یادیگی

څوک چہ ملکوت کښں پہ احمد سره یادیگی

ناسوت د محمد ملکوت د محمد

جبروت د محمد لاهوت د محمد

غلام د محمد بہ محمد سره یادیگی

څوک چہ ملکوت کښں پہ احمد سره یادیگی

لا د نشی لا سره ستا د لیاقت نشان

سودا د وی لہ ماسره ستا دفصاحت بیان

آزاد د پاک مولا بہ محمد سره یادیگی

څوک چہ ملکوت کښں پہ احمد سره یادیگی

## ***** نعت شریف *****

حقیقت د محمد چہ روح اعظم دے

د وحدت د مظهره برزخ کبری

پہ احمد سره نامدار روح اعظم دے

محمد نوم دے د جسم مصطفی

ملکوت کښں پہ احمد سره یادیګی

پہ ناسوت کښں محمد خیرالوری

پہ ادا کښں محمد هسے اثر کړی

لکہ سکر چہ پیدا کاندی صهبا

ہیر درود اؤ ہیر سلام وایم پہ تا

پہ عربو کښں پیدا شاه سلما

د دیدار شوق ئے خنجرځان م زخمی کہ

د وصال مرهم بہ چرتہ شی پیدا

پہ جواب کښں د الست تہ اول وے

پہ اعلان د ربوبیت کښں چہ بلی

جلوه ګر شولے اول پہ عبدیت کښں

د هر چا نہ پہ وئیلو د بلی

پہ غلام باندے د رحم نظر بویہ

تہ ئے جان د انبیاؑ برزخ زیبا

## ***** نعت شریف *****

مظهره ده د اسماؤ د الله
همگی واړه اسماءِ د مجتبی

د تمام امکان وصول صفات د خدایے دی
امکان څہ یعنی اظلال دے د حسنی

کہ احمد دے کہ محمود اؤ کہ حامد
یو مظهر د اسم ذات دے په معنی

د توحید یو مظهره ده نور څہ نہ دی
هر هغہ چہ دی لہ خدایہ ماسوی

د توحید معنی چہ نفی د مادون ده
یعنی خدائے پہ هرصفت کښں دے یکتا

هرهغہ صفت چہ خدائے لره لازم دے
شرکت نیشتہ پہ هغے کښں د هیچا

پہ واحد قدرت غالب دے پہ کثرت کښں
د کونین اثر کثرت کښں دفینا

د مصطفی قدم هردم ځما پسر د وی

ستاخیرالبشردوی

خیرالبشر خیرالبشر خیرالبشرد وی

ستاخیرالبشردوی

د مصطفی پہ قدم کیده قدم پہ هردم

پہ هرعمل دحضرت سنت رهبردوی

ستاخیرالبشردوی

خیرالبشر خیرالبشر خیرالبشرد وی

ستاخیرالبشردوی

غارت تاراج دایمان رسم ورواج دجهان

دمسلمان خدایہ سنت باندے گذردوی

ستاخیرالبشردوی

خیرالبشر خیرالبشر خیرالبشرد وی

ستاخیرالبشردوی

صالح عمل پہ سنت ویئل کول دحضرت

بے دسنت نہ هرعمل کښں لوئ خطردوی

ستاخیرالبشردوی

خیرالبشر خیرالبشر خیرالبشر د وی

ستاخیرالبشردوی

رسم رواج و بدعت دآخرت دے حسرت

خدایہ مسلم د دے طوفان نہ پہ گذردوی

ستاخیرالبشردوی

خیرالبشر خیرالبشر خیرالبشر د وی

ستاخیرالبشردوی

ایمان لرے پہ حضرت ولے کوے تہ بدعت

پہ عقیدت کبں دسنی سنت اکثردوی

ستاخیرالبشردوی

خیرالبشر خیرالبشر خیرالبشر د وی

ستاخیرالبشردوی

د پاک الله ا طاعت د مصطفی اطاعت

پہ غلامئ کبں دغلامہ درد جگرد وی

ستاخیرالبشردوی

خیرالبشر خیرالبشرخیر البشرد وی

ستاخیرالبشردوی

د مصطفی قدم هردم څما پسر د وی

ستاخیرالبشردوی

## ***** نعت شریف *****

هغہ یار چہ بے وفا نوی خائنگی د یارئ سره

هغہ کار چہ بے نوا نوی تامیگی پہ خوارئ سره

اے ساکن دارالهجر　　　　اے والی دارالهنر

مخالف چہ څوک لتانوی خائنگی دینداری سره

چہ قبول کہ څوک دخدائے فرمان پہ قدم دمصطفی روان

هر څوک میئن پہ تا چہ وی خائنگی بیدارئ سره

اے شمی خیرالوری　　　　اے شمی بدرالدجی

نظر کہ ستا پہ چا نوی زیانیگی خسارئ سره

اے حامی یوم الحشر　　　اے جامع یوم النشر

کہ پہ خلقو ستا لوئ شان نوی غرقیگی بیزارئ سره

ختم الرسول احمدنبی　　هادی السبل محمدنبی

شفقت کہ ستا پہ چا نوی خلاصیگی کردارئ سره

## ***** نعت شریف *****

بسم الله لرحمن الرحیم

د توحید دولت په لاس د مصطفی

رسیدلے دے هر چاته په دنیا

چا قبول که مشرف شو په توحید

خوک مردود شو عاقبت بشی رسوا

د توحید مظهر رسول دے مجتبی

د کثرت ماده نبی خیرالوری

د حضرت په سنت بویه هر عمل هم

مخالف به له سنت نه وی اغوا

اسوه د محمد رسول الله هم

عبادت دے عنایت دے له مولی

د غلام آرزو توحید دے شب و روز

په هر کار کښں اطاعت د مصطفی

## ***** نعت شریف *****

بسم الله الرحمن الرحیم

کہ تسبیح دے کہ تهلیل دے کہ ثنا

یو الله لہ دے لازمہ پہ هر چا

چہ مالک ددواړو کونو یو الله دے

هم رازق دے هم خالق دے دهرچا

شریک نہ لری پہ ذات کښں پہ صفت کښں

پہ واحد صفت کافی دے ذات یکتا

ده لہ ډیر کرم نہ ډیر عالم پیدا کہ

لہ عدم نہ شتہ کوؤنکے د هر چا

دا څما څمائ نہ وه ذات موجود وو

عاقبت څمونګ فنا د ده بقا

فنائ څمونګ خائستہ کہ پہ توحید

د غلام زاری منظوره کہ مولا

***************

## ******* حاجی گوهر لہ جواب *****

غمجن پہ غم د خپل آشنا یمہ زه
لکہ مجنون سر پہ صحرا یمہ زه

بے یاره یار سره یاری ده ځما
کمال د وصل کښں جدا یمہ زه

لہ ماورا ؤ تل فنا غواړمہ
باقی باالله غوندے بقا یمہ زه

زړگے ځما خیال مے لتا سره دے
لہ خپلہ خیالہ بے نوا یمہ زه

عجب دستور د زمانے دے مستور
لہ ځمائے نہ بے ځما یمہ زه

پہ عرش اؤ فرش مشرق مغرب کښں نشتہ
پہ زړه غمجن کښں دلربا یمہ زه

پہ اور د عشق داغلے زړه دے د چا
سوے ستی پہ غم لتا یمہ زه

علی گوهر لیونے نہ وو خلقہ
لیونے کړے خپل آشنا یمہ زه

پہ رنگ د فیض رنگین زړه دے د چا
پیره قربان گړنگ ملا یمہ زه

د اور سکروټے دی څما نظمونہ
لاس پہ لګ تود کہ خوش نوا یمہ زه

پہ داغ د فیض داغلے زړه دے د چا
وایہ رښتیا ګړنګ ملا یمہ زه

پہ تیغ د لا الہ مے ځان کہ حلال
سپارلے روح پہ الا الله یمہ زه

شګفتہ وائ چہ بیا وایہ غزل
پہ دے سبب غزل سرا یمہ زه

## ******** نعت شریف *******

لہ ډیره عمره پہ سودا یمہ زه
ستا د دیدار پہ تمنا یمہ زه

د کشمیری سید پوری پیر پہ دعا
باریک بینے سره بینا یمہ زه

د بالا کوټ نہ د سری پہ لارے
پیاده پا سفر پہ پا یمہ زه

هم د ګړهئ د ګلوټئ پہ لارے
شپہ پہ سری کښں پہ صحرا یمہ زه

پہ انتظار کښې د سید پور یم روان
د شمس الدین فقیر گدا یمہ زه

یو ځلہ بیا پہ جلوه راشہ راشہ
د زړه آرام پہ سره وا یمہ زه

یاره تیار شہ تہ سیدپور لہ پاره
سفر کونکے بہ صبا یمہ زه

د زړه پیوند ځما پیوند دے لہ تا
گر چہ ظاهر لہ تا جدا یمہ زه

مظفرآباد کوټری پہ لارے روان
سفر ناسوزه پہ غوغا یمہ زه

د فیضان دے کہ باران وریگی
حیرت زده پہ دے عطا یمہ زه

پرواز د روح دے کہ مرغان انوری
ده غالب حال پہ تماشہ یمہ زه

جشن تقدیس دے د توحید پہ نغمہ
د سیدپوری محل نوا یمہ زه

پہ علالت سره علیل غلامہ
پہ ابتلاء کښې مبتلا یمہ زه

## ****** آخری الوداع ******

وقت د رخصت دے روانیگ حاجی
غیگ له پنجرے نه قربانیگ حاجی

روحی بوسه کړه په قدم د حبیب
د زړه په وینو کریانیگ حاجی

کله به بیا شی په لاس دا وقتونه
لوئ غنیمت دے میلانیگ حاجی

مدنی فیض واخله له ځانه سره
په احترام راروانیگ حاجی

ذره فتور په خپل حضور مه لره
د پاك الله په آمانیگ حاجی

مغروره نه شے په سفر د حجاز
له صمدیت نه لرزانیگ حاجی

مدنی فیض روح د غلام وړیدے
له جذبیاتو ئے زاریگ حاجی

## ******** آخری کلام ********

په جدایئ چه جدا کیگی یاران د دنیا

روز محشر به ملاویگی دوستان د دنیا

د جدایئ خبرے راغلے تدبیر به څه ویئ

خود په تقدیر به رضاکیگی خویشان د دنیا

کار د ژوندون دے چه زبون دے طاقت نه لری

په ناچارئ به رخصتیگی یاران د دنیا

نن عربی سلمان روان دے ریاض ته درومی

سفر د ناز دے روانیگی یاران د دنیا

غلام دے خپله غلامی کړی صابر په قسمت

زګ د دریاب دے روستو کیگی طوفان د دنیا

سید پوری پیر روشن ضمیر یادیگی څما

بیمار به خرنګ ملاویگی ارمان د دنیا

*******د ژوند آخری بعتونه*******

طبعی دیدار د شوق بیدار سره وی
ذوقی دیدار د ذوق بیدار سره وی

د اطمینان معنی حضور دے دوام
دوام حضور د زړه بیدار سره وی

آرام قرار و سکون له ذاته سره
فکر کثیر ذکر اذکار سره وی

زړه چه ګلګون شی په ګلشن د ذکر
انس الفت شغل د یار سره وی

چه منور شی قلب په نور د ذکر
تعلق د غیر په انحصار سره وی

په انبساط کښی آزادی وی عطا
ناز د مطلوب نیاز طلبدارسره وی

چه ایراده بند شی په بند د ذکر
مشغله کله بل روزګار سره وی

د سید پوری عارف شاګرد دے غلام
د بیمارئ عذر بیمار سره وی

د تبتل په زنجیر زړه که بندی
صبر لازم دے کاروبار سره وی

## ***** متفرقات *****

### ***** لا *****

دا نافی حرف د لا　　یو عصا ده د موسی
په ادا کښې څه بدل　　ترینه جوړ شی اژدها
حوادث دنفس شیطان　　له ضمیره شی فنا
خطرے دنفس شیطان　　ساحران دی د موسی
علاقے امکانی واړه　　دی له سحره مهیا
له دے لا نه بشی لا　　کائنات یعنی فنا
د توحید نور بشی پاتے　　حقیقت سره بقا

### ***** اله *****

مجازی الا هیات　　لکه لات شه یا منات
منقدم شی پس دلا نه　　امکانی اوثا نیات
معبودنشی په مخلوق کښې　　یو لا ئق د عبادات
یو معبود لره کیدے شی　　له هر قسمه اطاعات

***********

یار چه څما یار شی د اغیار به کوروکر نشی
خیر که څه خفه یمه خفه چرے دلبر نشی
اهادیا هدایت عشق تمامه تام کن
سور چه په باطن کښې د توحید گرم شرر نشی

******دوه بیتونه******

نشته جړیدونکی د هجر رسول
شوه په چغو سر لکه اهل عقول
ستا ومه تکیا لما نه لاړے ته
ولے د ممبر په سرو لاړے ته

********دوه بیتونه******

ګل شو دصحرا ګلونه رنګ په رنګ
شاخ اؤګل بلبل درے واړه خنګ په خنګ
شاخ مقام دعشق دے ګل لکه معشوق دے
عاشق اؤ بلبل آواز ئے شوق دے

*******یو بیت********

یار ځما سنګار ځما بازار ځما روئے بار ځما
بت ځما صورت ځما تار ځما زینار ځما

***************

دا ذکر مخفی کمال د روح دے
دا ذکر جلال جمال د روح دے
روح چه شی مفروحه ملاحت سره
دے له عشق سیر کړی معراجت سره

***********

نن چه په کوم قیمت موندے شی بیا به ګران وی لدے

چه لس په یو باندے موندے شی بیا به ګران وی لدے

***** یو بیت *****

خدایه څه شوه سادګی د ساده ګانو

چرته لاړه بهادری د بهادرانو

***** اختر *****

په هغه اولس به نن اختر وی

چه نظر ئے په توحیددرب اکثر وی

له توحیده بل عشرت په جهان نشته

موحد لره توحید شهد و شکر وی

************

دا بمبار خبر د چا دے نه پوهیګم

غم په ما دے که په تا دے نه پوهیګم

تعلق اسلامی به تل تر تل وی

که دنیا دے که عقبا دے نه پوهیګم

د عرفان یاران په ګور شو احمد جانه

اس خندیګی که ژړیګی نه پوهیګم

***********

مدام لتا سره ځما د زړه سودا به نشی

عشق لیلی به نه شی

مدام له تا سره وی

ستا له رضا سره وی

رضا قضا سره وی

فنا بقا سره وی

دغم ما بنام دے خوشحالئ سره صبا به نشی

عشق لیلی به نه شی

***** تمت باالخیر *****

***** ختم شد *****